د افغانستان اسلامي جمهوریت
لوړو زده کړو وزارت
د پکتیا پوهنتون
د ښوونې او روزنې پوهنځې
د پښتو ادبیاتو څانګه
دریم ټولګي اول سمستر لکچر نوټ

# د خوشحال خان خټک ژوند او د وسله والې مبارزې انځور





ترتیب کوونکی استاد : رحمت الله
تدریسي استاد : انعام الله "درویش"

کال:.............................................(۱۳۹۲هـ ش)

# خوشحال خان ( ۱۰۲۲ – ۱۱۰۰ ) هـ ق

مخکې له دې نه چې په خوشحال بابا باندې وغږیږو ښه به داوي چې دهغه دژوند اونسب په باب رڼا واچوو .

خوشحال خټک په دستارنامه کې خپل نسب ترختک پورې رسولی.
خپله کورنۍ اونسب یې داسې ښودلی دی : ( ۰۰۰۰ ابتداء به یې دخپله نمسیه کوم چې افضل خان داشرف خان ، اشرف خان دخوشحال ، خوشحال دشهباز خان ، شهباز خان دیحیی خان دملک اکوړي ، ملک اکوړی دچنجو چنجو دتومن ، تومن دحسن ، حسن دشیخ علي ، شیخ علي دهوتي ،هوتي دبټي ، بټي دلقمان ،لقمان دبرهان ،برهان درې زویه : لقمان چې خټک یادیږي .سلیمان چې افریدی دی . اتمان چې اتماخیل دی).

خوشحال بابا چې کومه شجره دخپلې کورنۍ په باب پورته راوړې ده اوبیا یې ترخټک او وریسې کرلاڼي پورې رسولې چې داشجرې رسېدلې ده ، دپښتو دانسابو اوتاریخ په کتابونوکې هم له ځینو جزیې توپیرونو سره ، همداسې ده ، دغه شجره دهیڅ شبهې وړ نه ده خوبیا دخټک اوکرلاڼي پورې چې دا شجرې رسېدلې دي د شک وړ دي . ځکه دغه نومونه اوقومو ډېر لرغوني اوزاړه دي همدارنګه لوی خان په خپله یوه قصیده کې خپله کورنۍ داسې ښودلېده .

| | |
|---|---|
| زه خوشحال دشهباز خان یم | چې تورزن یم کان په کان |
| شهباز خان دیحیی خان ؤ | چې بل نه ؤ هسې ځوان |
| یحیی خان داکوړي ؤ | چې په توره شو سلطان |

داکبر بـــــــادشاه په دور شودخپل ولـــس تر خان

دپورته قصـيدې د راوړلو څخه زمونږ ه دخان دکورنۍ حال اونسب معلومول مراد ؤ، اوس به لږ دمخه ولاړ شـــو اودملک اکوړي څخه به يې راونيسو.

په پورته پيژند نه کې ذکر شـــول چې ملک اکوړی د درويش عرف چنجو زوی لومړنی خټک ؤ چې شهرت يې ومونده ، اودلوی خدای (ج) د ورکړي استعداد اوقابليت له امله يې دجلاالدين اکبر توجه ځانته راواړوله دی اصلاً (تری ) خټک ؤ.

## د خوشحال خان زوکړه :

تردې ځايه خومو دخوشحال خان بابا په شجره اونسب يو څه رڼا واچوله ، خو اوس راځو دخوشحال بابا زوکړې اوپيدا ايښت ته.

خان په خپله قصـيده راشـه واوره داسـتان کې دخپلې زوکړې کال داسـې ښودلی دی :

دهجرت زر دويشت سن ؤ چې زه راغلم په جها ن

همدرانګه دتاريخ مرصـــع په (۲۵۸ ) مخ کې يې دزوکړې تاريخ په دري ژبه داسې راغلی دی :

تاريخ خوشحال خان خټک دربيع الثاني امـــد چون درين کهنه رباط

خاني حـــق اګـر دانا و مـــــــرد را تاريخش ګشت ( خيرعالمياني)

دلته (خیرعالمیاني ) کلمه د ده دزوکړې ماده ده چې دبجد په حساب د (۱۰۲۲ ) سره سمون خوري .

خوشحال خان په ( ۱۰۲۲ هـ ق ) کال دربیع الثاني په میاشت کې زیږېدلی دی. داچې دربیع الثاني په کومه ورځ پیداشوی دی ( جوت معلومات نه شته . په توابعو پورې مربوط دکربوغې اوسیدونکی ؤ دځینو وړو مسائلو په رامنځته کیدو کې دخپلو خپلوانو څخه خفه اوله هغه ځایه (خوړې ) ته راغلی . اوله خپل ټولي سره به دسونیالې په دره کې چپاوونوبوخت ؤ . اوله خپل ټولي سره به دسونیالې په ګوپال داس دتاریخ ضلع پشاور ( ۳۰۲- ۳۰۸ ) مخونو په حواله وایي چې : ملک اکوړی خان دکربوغي نه ؤ ) بلکې دی دخوترې( دخوتره ) اوسیدونکی ؤ اوله هغه ځایه یې کوچ کړی دی .

کله چې په (۱۹۸۹ ) هـ ق کال جلال الدین اکبردمیرزا حکیم دتعاقب لپاره ده ته راغلی . نو دلویې لارې دساتلو لپاره له سردارانو سره خبرې وکړې ، پدغه وخت کې ملک اکوړي زیات شهرت پیداکړی ؤ . نو سردارانو هم همده ته دلارې د سپارلو لپاره په اکبرپاچا زیات ټینګارکاوه .

اکبرپاچا دی راوغوښت

پرده یې زیاته مهرباني وکړه . ده هم شاهي ملازمت غوره کړه ، اودا وعده یې ورسره وکړه چې دی اوقبیله به یې دپاچا وفادار اوخدمتګار وي . پاچا له خیراباد ه تر نوښاره پورې ځمکه ملک اکوړي ته په جاګیرکې ورکړه په لاره یې دڅارویو دتګ راتګ دمحصول اخیستو اختیار هم ورکړه اودشاهي سرک ساتنه یې هم ده ه وسپارله . خوباید ووایو چې د(۱۰۲۲ هـ ق ) کال د ربیع الثاني میاشت چې د(۱۲۱۳ م ) کال د می دمیاشتې دیویشتمې سره سمون خوري زوکړی دی .

په دغه وخت کې دهندي مغلي واکمنۍ يا امپراتورۍ واکي دجلال الدين اکبر دزوی نورالدين دکورنۍ دجاګيرداری کابو درې ديرش کاله تير ؤ.

شهباز خان د ده دزوکړې په کال د دوه ويشتو کالو ځوان ؤ سرای اکوړه د دوی د سرداری مرکز ؤ چې په همدغه سرای کې خوشحال بابا دنيا سترګې غړولې دي.

**د خو شحال خان خټک کورنۍ:** د کوهاټ ضلع، د خټکو کور دی، يعنې د خټکو لويه برخه پر کوهاټ پرته ده، په کوهاټ کې د خټکو دوه لوی ښاخونه دي، يو يې بولاق او بل يې تری دی. د خوشحال خټک د غور نيکه نوم اکوړي و، چې په تری خټك پورې يې تړاو درلود د ملك اکوړ په وخت کې هم د خټکو لويه برخه پر کوهاټ پرته وه، خو ملکاکوړی له کوهاټه راغلی او د اټك پر خواوشا دهغې بادشاهي لارې پر غاړه اباد شو، چې د اټك څخه د نوښار پر لور پېښور ته غزېدلې ده، دا سې ښکاري چې په هغه وخت کې هم د نوښار او اټك تر منځه خټك اباد و او ددې خټکو او د هغو خټکو چې له ملك اکوړي سره له کوهاټه راغلي وو، اکوړی مشر شو اکوړي د سرای په نامه د مغلو د بادشاهي سړك پر غاړه يو کلی اباد کړ، چې تر ننه پورې آباد دی او د سرای اکوړي په نامه مشهور دی.

اکبر بادشاه چې په دويم ځل دروه د کوهستاني سيمې په لور راغی نو د هغه جرنيل مان سنګهـ او نورو معتمدينو ورسره د ملك اکوړي پېژند ګلوي وکړه، مان سنګهـ بادشاه ته وويل چې دا ملك په دې سيمه کې يو با رسوخه سړی دی که بادشاه سلامت ده ته د اټك او پېښور ترمنځه د بادشاهي سړك ساتنه ورپه غاړه کړي، نو دی به دا کار په ښه شان سرته

ورسوي. په دې وخت کې يو سفزو بـه د اټک په بادشاهي لارو چپاوونه وهل او قافلې به يې لوټلې، چې پر سړک امن نه وه بادشـاه ته وويل شـول چې د ملك اکوړي او د هغه د قبيلې له يوسـفزو سـره دښـمني ده پـــه دې بنسټ د خپل ذاتي او قبايلي غرضونو د سرته رسـولو لپـاره بـه هـم ملـك اکوړی پـه اخلاص سره د سړك سـاتنه کـوي بادشـاه ومنلـه او ملـك اکـوړي تـه يـې د نوښـار او اټـك تـر منځـه سيمه د جـاګير پـه ډول ورکـړه، پـر دې سـربېره ملـك اکـوړي تـه پـه بادشاهي لار د محصول ټولولو حق هم ورکړل شو په تاريخ کې د لـــومړي ځـــل لپـــاره د ملك اکوړي له شهرت سره سم د خټك قبيلې نـوم هـم يـاد شـو ګنـې تـر اوسـه پـورې دومره په نومورکي حالـت کـې پرتـه وه، چـې پـه بـابر نامـه کـې د پـښتنو د ټولـو لويـو قبيلو يادونه کړې ده خو خټك يې ورکې نه دي ياد کړي.

ملك اکوړی د درويش عـرف چنجـو زوی، لـومړی خټـك و چـې شـهرت يـې بياموند او د خپل خدای (ج) ورکړي استعداد او قابليـت لـه املـه يـې د جلال الـدين اکبر توجه جلب کړه ده ته ملك اکو هم وايي:

دی ترې خټك وه او د دوسـت محمد کامل د څېړنو له مخې د ټيـــري پـــه توابعـو پورې اړوند د کربوغې اوسېدونکی و، چې له خپلو خپلوانو سره د خفګان پـه وجـه لـه هغـه ځايـه (خـوړې) تـه راغـی او لـه خپـل ټولي سـره بـه د سـونيالۍ پـه دره کـې پـه چپاوونو مشغول وه، اما پرېشان خټك د منشي ګوپالـداس د تـاريخ ضـلع پـشاور د (۳۰۶-۳۰۸) مخونو په حواله وايـي چـې ملـك اکـوړ خـان لـه کربـوغې څخـه نـه و، بلکـې د څـوترې (څوتره) اوســـېدونکی و او لـه هغـه ځايـه يې کوچ کړی دی، د ملك اکوړي دغـه جاګيرداري او منصبداري د ده اولادې تـه پـه ميـراث پاتـې شوه او دده په کورنۍ کې کلونه کلونه له يو نه بل ته ورسېده.

کله چې ملك اکوړی له خپل زوی یوسف خان او ملګرو سره د نازو خان بولاق ختټك له لاسه ووژل شو له ده اته زامن پاتې وو، چې مشر یې یحیی خان نومېده او قبیلې یې دی د خپل مشر په توګه ومانه ده ژر د خپل پلار او ورور بدل واخیست دغه وخت د ختټکو خېلونو تر منځ خپل منځي شخړې موجودې وې، ځینې خېلونه د یحیی خان په سرداری راضي نه وو.

ددغو دښمنیو او شخړو درې څلور کاله شوي وو، چې یوه ورځ یحیی خان نوښار ته روان وه، ځینو ختټکو ورته لار نیولې وه دی او دده زوی عالم خان دواړه یې ووژل د یحیی خان تر وژل کېدو وروسته قبیلې شهباز خان ختټك(۱۰۰۰-۱۰۵۰هـ ق) خپل مشر وټاکه شهباز خان د خپل پلار او ورور د بدل اخیستو لپاره د سینیو ختټکو پر کلیو حملې وکړې، سیني ختټك غروته وختل د ملك ښادي خان زوی ووژل شو د ختټکو سرداري په دې توګه تر شهباز خان راورسېده.

د خوشحال خان زوکړه: خوشحال خان ختټك د مغل شهنشاه نورالدین جهانګیر(۱۰۱۴-۱۰۳۷هـ) (۱۶۰۵ -۱۶۲۷ع) په زمانه کې د ۱۰۲۲هـ ق کال د دویمې خور په میاشت، چې د۱۶۱۳ع کال د مې یا جون له میاشتو سره سمون خوري، له پېښور نه ۳۵میله ختیځ لور ته په سرای اکوړه کې چې د لنډي سیند په سهیلي غاړه پروت دی د شهباز خان کره وزیږېد.

زده کړه: د خوشحال خان ختټك زده کړه سیستماتیکه بڼه نلري او هم یې د زده کړې په اړه پوره څرګندونې نه دي کړي که څه هم نوموړي دخپل ژوند اکثره پېښې په نظم کړي دي او د ځان او کورنۍ په اړه یې ډېر څه په څرګند ډول راوړي دي، خو د خپلو زده کړو په اړه یې داسې څرګند څه په

لاس کې نشته په دې اړه هېواد مل په خپل اثر (ننګيالی د زمانې) کې د ځينو څېړونکو ليکنې راوړي چې زه يې دلته اړينې بولم:
په دستار نامه کې راغلي دي : ((زموږ استاد اويس صديق ملتاني ډېر بزرګ متبرك سړی و، د علوم ظاهري او باطني بهرور وه ...))
له دې پورته يادونې سړی دومره پوهېږي چې خوشحال خان له شاه اويس ملتاني نه زده کړه کړې وه، هغه يې استاد و . خو لکه استاد کامل چې ويلي دي: ((دانه ده ښکاره چې له هغه نه خوشحال خان کله، چېرې او څومره وخت زده کړه کړې ده)).
پرېشان ختك ويلي دي چې د ځينو خلکو دا خيال دی چې خان په ملتان کې هم درس ويلی دی، خو ځينې بيا وايي کېدای شي شاه اويس ملتاني دې په پېښور کې تدريس کاوه ځکه چې پېښور هم د ديني علومو مرکز وه.
د خوشحال خان ختك د زده کړې په باب سړی دا ويلای شي چې ده د کور په جومات او يا سيمه ييزه مدرسه کې درس ويلای دی . اما دانه ده ښکاره چې ده څومره وخت او د ژوند تر کوم کال پورې د زده کړې لړۍ جاري ساتلې ده په استادانو کې يې يوازې دشاه اويس ملتاني نوم څرګند دی نور استادان يې نه دي معلوم ....
خو کله چې سړی د خوشحال بابا ټول اثار مطالعه کړي نو ورته ښکاري چې دده خارق العاده
استعداد د زده کړې او مطالعې له لارې روزل شوی دی او د غو زده کړو يې بيا په اثارو کې خپل ځان ښکاره کړی دی، عبدالحی حبيبي د خوشحال مرغلرې د مقدمې په ( ۱۸مخ) کې ليکلي دي: ((خوشحال خان په کوچنيوالي کې د خپلې زمانې مروج علوم ټول ويلي وو دده له کلامه ښه

ښکارېږي چې ده اسلامي علوم لکه : فقه، حديث، تفسير او نور عقلي او فلسفې علوم، لکه: منطق، حکمت، ادبي علمونه، د فصاحت او بلاغت اصول، لکه : معاني، بيان، عروض، قافيه او نور ټول ويلي او پرې عالم و)).

د خپل وخت له ځينو مشهورو عالمانو سره يې ناسته ولاړه هم درلوده، له هغو ځخه يو هم مولانا عبد الحکيم سيالکوټي (۱۰۶۷ هـ ق) مړ دی دی د جهانګير او شاه جهان په دورانو نو کې د نيمې وچې له جيدو عالمانو څخه وه خوشحال خان په دستار نامه کې راوړي دي: ((عالم العلما مولانا عبد الحکيم سيالکوټی مې په خپله وپوښتېده، لکه : مسطور شول)).

واده او اولاده: خوشحال خان خټک په( ۱۰۴۰ هـ) کال د ۱۸ کالو په عمر واده وکړ، د واده په ورځ پرې سخته تبه راغلې وه، چې په خپلې ورا پسې هم لاړ نشو. هېواد مل ليکي چې په ناوې پسې د خسر کورته نشواي تللای، ناوې يې انا (قذيفې) راوسته دی له تبې تاوېده لوڅې پوڅې يې درلودې دده د خولو کولو لپاره يې مور او څو نورو ښځو بړستن پرې ټينګه کړه، تر دې حده چې خان بې هوښه نه بلکې داسې فکر کېده چې مړ دې وي. ښځو شور فغان پيل کړ، مګر االله تعالی دی وساته، ساه پکې وغړېده، دولس ورځې وروسته خو له پرې راغله لږ پر حال راغی خلک يې وپېژندل او خپله ناوې يې وليده چې سرته يې ناسته وه دا و د خوشحال خان د لومړي واده لنډ بيان چې تاريخ مرصع په ډېر تفصيل او په زړه پورې بيان کړی دی، خو دا بايد وويل شي، چې خوشحال خان څو نور ودونه هم کړي وو چې شمېر او وختونه يې خوشحال پوهانو نه دي ښودلي اودخان په آثارو کې يې هم ياد نه دی راغلی، خوشحال خان خټک څو

ودونه کړي وو پر نکاحي مېرمنوسربېره يې په حـرم کې وينځي هم درلودې له دغو مېرمنو او وينځوڅخه يــې د شــپېتو شـاوخـوا زامــن او يو دېرش لوڼې زېږيدلې وې.

د تاريخ مرصع په(۲۵۹-۲۵۸) مخونو کې راغلي دي: ((واضع دې شي، خان علين مکان ته حق تعالی شپږ پنځوس فرزندان نارينـه کرامــت کـړه، پـه داواړو کې خان جنت مکان والانبان چې والد د مولف دی، اثـر او ولـي عهـد وه، سـعادت خان، بهرام خان، نظـام خـان، يحيــی خــان او شــهباز خـان دا شپږ واړه لـه يـوې مـوره وو)).

خان هم په خپل ديوان کې وخت پـه وخـت د خپلـو زامنـو شمېر ښـودلی دی دا شمېر يو ډول نه دی کله زيات او کله لږ.

خان د خپلو ځينو زامنو د زوکړې تاريخي قطعې په دري نظم کې ويلي دي او دا قطعــې افـضل خــان ختـك پــه تــاريخ مرصع کــې راخيــستي دي پــر اشـــرف خـــان، سعادت خان، بهرام خان، نظام خان، يحيی خان او شهباز خان سربېره چې لـه يـوې موره وو د ځو نورو زامنو نومونه يې چې د خان له کلامه او تــاريخ مرصـــع نـــه لاس تـــه راځي دادي: عبد القادر خان، صدر خان، عابـد خـان، نـصرت خـان، سـکندر خـان، ګـوهر خـان، عجـب خـان، آزاد خـان، عبـدالعزيز خـان، خالـد خـان، طـاهر خـان، بختناك، جلال خان، عـادل خان، جعفر خان، اکبر خان، عبد الرحمن خان، نجابت خان، ابو الخير خان، فرحت خان، مومن خان، زاهد خان، حامد خان، عـادل خـــان، بشير خان، اسمعيل خان، يوسف خان، کمال خان، محبت خان، علاوالدين خـــــان، فتح خان، نوروز خان، شــاه علي خان، جنګي خان، مشکر االله خان، او نور .... د خـان د لوڼو شمېر تاريخ مرصع (۳۱) ښودلای دی:

خو په فراقنامه کې خان دا شمېره دوه دېرش ښودلې ده، د لوښو په نومونو کې يې د دوو نومونه موږ ته ښکاره دي، يوه بي بـــي تاجـــه او بله بي بي حليمه، په پورته زامنو او لوڼو کې يې ځينې د پښتو ژبې تکړه ليکوال او شاعران تېر شوي دي.

## خوشحال خان خټک ته د قبيلې مشري ور سپارل کېدل:

د خټکو او يوسفزيو تر منځ کلونه دښمني پرلپسې پر يو بل د بريدونو پـه نتيجه کې لا پسې تازه کېدې په (١٠٥٠هـ ق) کال شهباز خـان لـه يـو سـفزيو سـره پـه جګړه کې ډېر سخت ټپي شو خوشحال خان خټك هم ډېر سـخت ټپ خوړلى وه شـهباز خان د همدې زخم له سـببه پنځوس ورځې وروسته د پنځوسو کالو پـه عمـر مړ شـو دا چې خو شحال خان خټك دپلار مشر زوی وه نو قبيلې دی د سردار او مشر پـه توګـه ومانه ښاغلی کامل ليکي: (پـه ١٠٥٠ سنه هـ. (١٦٤٠-١٦٤٠ع) کې اکا خېلو چې د يوسفزو د کمـــــال زي ټپي خلق د ماليې له ور کولو نه انکار و کړ ، د رمضـــان په وروستيو کې شهباز خـان په دوی حمله وکړه خوشحال هم ورسره وه د بلږ د کندي په خوا کې د مردان پـه ضلع کې طورو او مايا و ته نژدې د خټکو اويو سفزو جنګ وشو . شهباز خان يو لويګنـــده په غشي ولګيده تر بور ساقي بيګ يې ومړ، شهباز خان وروسته له پنځوســو ورځــو د پنځوســو کالو په عمر پر ( ١٠٥٠هـ ق) کال د شوال پـه پـنځـم د زيارت پـه ورځ چې د ( ١٦٤١ع) کال د جنوری له اتلسـمې ســــره سمون خوري په حق ورسيد)).

کله چې خوشحال خان خټك د خپلې قبيلې مشر کېږي شاه جهان هم دده مشري تائيد وي.

## د خوشحال خان ختک جګړې:

زه د موضوع د لنډون لپاره دلته یوازې د خوشحال خان ختک دځینو مشهورو جګړو دنومونو او نېټو په راوړو بسنه کوم:

۱: په (۱۹۳۵ه) کال د بهاکو خان یوسفزي د بولاقو پر ختکو حمله او شهباز خان یې د مرستې لپاره له یو واړه لښکر سره مقابلې ته ورغی ، چې خوشحال خان هم په دې جګړه کې د دیار لسو کالو په عمر د لومړي ځل لپاره ګډون کړی دی.

۲: پر ۱۰۴۲ هـ کال پر عیسی خیلو یې برید کړ ی دی چې ځینې همدا کال ښیي ځینې وایي چې څو ترې ته ترتګ وروسته یې دا حمله کړې ده.

۳: پر (۱۰۵۰ه) کال اکا خېلو د مالیې په ورکولو کې ناغیرې کړې وه ، په همدې بنسټ شهباز خان د روژې په وروستیو کې له یو واړه لښکر سره د اکا خېلو پر سیمه برید وکړ، چې خوشحال خان او جمیل بیګ هم له شهباز خان سره ملګري وو.

۴: پر (۱۰۵۱ه) کال د کانګړې سوبه.

۵: پر (۱۰۵۲ه) کال د بلخ او بدخشان جنګې پېښې.

۶: پر (۱۰۶۳ه) کال له بنګښو سره جګړې.

۷: پر (۱۰۷۰ه) د تېرا مهم.

۸: پر (۱۰۷۰ه) کال یې له یو سفزیو سره جګړې.

۹: پر ( ۱۰۷۳ه) کال له باغیانو سره جګړې.

۱۰: پر (۱۰۸۳ه) کال د خیبر جګړه.

۱۱: پر ( ۱۰۸۳ یا ۱۰۸۴هـ) کال د خوشحال خان او بهرام خان تر منځ ورې جګړې.

۱۲: پر (۱۰۸۴ه) کال له بنګښو سره جګړه.

۱۳: د (۱۰۸۴هـ) په پای کې د کړپې او نوښار جګړې.
۱۴: پر (۱۰۸۲هـ) د ګنبت جګړه.
۱۵: پر(۱۰۹۱هـ) د ډوډې جګړه.

## د کوچنیوالي ځيني مهمې پيښې:

دتاريخ مرصع په (۲۷۲) مخ کې يې راوړي چې خوشحال خان دشپږو او و کالو ؤ) چې دلنډي سيند په غاړه کې يې لمبل په اوبو کې ډوب شو ، ځينو ميرمنو د سيند په غاړه کالي مينځل دا صف مور دولتۍ د سيند په اوبو کې دخوشحال خان دويښتو پورې تړلي وريښم ليدلي وو .

په اوبو رواووت ، چيغې سورې يې پيل کړې وې ، نورې خدمتګارانې راټولې شوې ،نس يې‌دا اوبو څخه ډک شوی ؤ، دخولې اوپوزې له لارې داوبو وتلو څخه وروسته په هوښ راغی . ددې پيښې تاريخ : (۱۰۲۸ هـ ق) ښودل شوی دی خو د( پښتو ادبياتو تاريخ کې دغه تاريخ (۱۰۲۹ هـ ق) ښودل شوی دی په غالب ګومان لومړنۍ سنه درسته ده ، دځينو چاپي تيروتنو له امله شايد دابله سنه غلطه شوې وي .

داسلامي دود سره دملک اکوړي دغه جاګير داري اومنصبداري دده اولادې ته په ميراث پاتې شوه ، اودده په کورنۍ کې کلونه کلونه له يوه نه بل ته رسيدله کله چې ملک اکوړی دخپل زوی يوسف خان اوملګرو سره دنازو خان بولاق خټک له لاسه ووژل شو ، دده اته زامن ؤ.

چې مشر يې يحيی خان ؤ چې په دغه وخت کې دخپل پلار ځای ناستي شو ، ده هم دخپل ورورو په انتقام کې سستي ونه کړه ډير زريې دپلار او ورور انتقام واخيست . په دغه وخت کې دختکو دخپلو ترمنځ منځې شخړې موجودې وې .

قومونه دیحیی خان په مشرۍ راضي نه وو . ددغو دښمنیو اوخپل منځي شخړو درې څلورکاله شوي وو چې یوه ورځ یحیی خان نوښار ته روان ځینیو خټکو ورته لاره نیولې وه ، دی اودده زوی عالم خان نوښار ته روان ځینو خټکو ورته لاره نیولې وه ، دی اودده زوی عالم خان دواړه یې ووژل .

دیحیی خان دمرګ څخه وروسته قبیلې دمشرۍ واګي شهباز خان (۱۰۰۰-۱۰۵۰ هــــ ق ) ته وسپارلې ده هم دخپل پلار او ورور دانتقام اخیستو لپاره دسینیو خټکو پرکلیو حملې وکړې ، سیني خټک غرونو ته وختل دملک زوی ښادي خان ووژل شو ، سیني خټک غرونو سرداري ترشهباز خان پورې ورسیدله .

داته کالو په عمر دګرمۍ په موسم کې له ماشومانو سره دځپرې لاندې لوبې راپریوته دتاریخ مرصع په حواله چې کانۍ دوه ټوټې تېزی سره ډېره راپریوته دتاریخ مرصع په حواله چې کانۍ دوه ټوټې شو ، دخوشحال خان اوچولۍیې هم دوه ځایه کړ. بې هوښه شو ، کابو یوه اونۍ دمرګ سره لاس ګریوان ؤ . په اوومه ورځ په هوش راغی اوروغ شو ، داپیښه د(۱۰۳۰ هــ ق ) کال شاوخوا رامنځته شویده .

**زده کړه** : ددستارنامې په (۳۹ مخ ) کې راغلي دي (مونږ استاد شاه اویس صدیقي ملتاني ډېر بزرګ متبرک سړی ؤ دعلومو ظاهري اوباطني بهرور ؤ ۰۰۰۰۰))

له دې پورتنۍ وینا څخه څرګندیږي چې خوشحال خان له شاه او یس ملتاني نه زده کړه کړې ده ، هغه یې استاد ؤ ، خواستاد کامل بیا داسې ویلې دي :

دانه ده ښکاره چې له هغه نه خوشحال خان کله ، چېرې اوڅومره وخت زده کړه کړې ده.

پروفيسورپريشان خټک پدې باب داسې ويلی " دځينو خلکو داخيال دی ، چې خان په ملتان کې هم درس ويلی دی .

خو ځينې بيا وايې چې کيدای شي شاه اويس ملتاني دی په پيښور کې تدريس کاوه . ځکه چې پيښور په دغه وخت کې هم دديني علومو مرکز ؤ .

دده دزده کړې په باب سرې ويلې شي ، چې ده دکور په جومات ياسيمه کې يېزه مدرسه کې درس ويلی ، اما دانه ده جوته چې ده څومره وخت اوډژوندتر کوم کال پورې دزده کړې لړۍ جاري ساتلې ده .

په استادانو کې يې يواځې دشا ه اويس ملتاني نوم څرګند دی ، نور اسناد يې نه دي معلوم . خو دلاندې بيتونو څخه داڅرګنديږي چې خان دتعليم نه د ښکار سره زياته مينه درلوده اودعلم دحاصلولو لپاره به يې نه پريښود ، په لاندې بيتونو کې يې داسې ويلې دي :

طبيعت مې عطايې نه دتحصيل دی      که خبر يم داملا ء په استعمال
يوساعت به مې په درس شل مې په ښکاروو      کله ښکارپريښوم په کسب دکمال
دجهان تحصيل به کُل واړه زما ؤ      که اخته نه وای دښکار په اشغال

خو که سرې دخوشحال بابا په اثاروته وګوري ، نو ورته جوتيږي چې دده دغه استعداد دزده کړې اومطالعې له لارې روزل شوی اودغو زده کړو يې بيا په اثاروکې خپل ځان ښکاره کړی .

## د مغلو په همکارۍ اود پښتنو په ضدد خوشحال خان مبارزه:

خوشحال خان که څه هم دمغلو په ضد دپښتو ترشا سخته مبارزه کړیده همدارنګه یې له دې څخه مخه دپښتو په ضدهم زیاته مبارزه کړیده،اوزیات پښتانه یې دتوري دتیغ څخه تیر کړیدي ، دلته مې لومړی دپښتو په ضد مبارزه باندې یوڅه رڼا اچوم اویوڅومهمې پېښې یې را اخلم.

۱. **په سیمه یزو جګړوکې دخان ګډون** : - لوی خان ددیارلسوکالوو عمرڅ چې باکو شهباز خان یوسفزي دبولاقو ختکو په یوه کلي حمله وکړه دخان پلارشهبازخان ختک دیووړوکې لښکر یې په جهانګیري نومې ځای کې سره مخامخ شوي په لومړیو کې ختک غالب اویو سفزي مغلوب ښکاریدل خوختک ډیرژرماتې سره مخامخ شول اوزیات ختک ووژل شولپاتې لښکر دخپل سردارسره مخامخ شول اوزیات ختک ووژل شول پاتې لښکر دخپل سردارسره تېښته ځان خلاص کړ ددغې پېښې تاریخ (۱۰۳۵ هـ ش ) ښ،دل شوي دی.

**۲. د بلړ جنګ** : - په تاریخ اثاروکې راغلی دي چې اکاخیلو (دمندړ قبیلې په کمال زي ښاخ پورې اړه لري ) دمالیې دپوره کولو کې ناغیړې کړې وه په همدې سبب نو د(۱۰۳۵هـــ ق ) کال په رمضان کې شهبازخان ختک له یوه واړه لښکرسره دیوسفزي یوپه سیمه ځای په حمله وکړه چې پدې یرغل کې دشهباز خان سره یرغل کې دشهبازخان سره دوه زامن خوشحال خان اوجمیل بیک اووارارہ یې ساقي بیک ملګري وو یرغلګرو داکا خیلو زیات ځایونه یې ونیول اوډیربیرته ستانه شول ددوی له ستنیدو سره سم اکاخیلو هم خپل لښکرراټول کړ.

اودختېکو دلښکر پسې وخوځېدل لږ وړاندې يې دبلږ نا له نومي ځاى کې دختېکو لښکر رالاندې کړ ددواړو ډلو . ترمينځ همدلته سخته جګړه ونښته خوشحال خان اوو ورورېې دواړه زخمي شول اوپلارېې هم غشي ؤ خوړلي ؤ . په تاريخ مرصع کې راغلي چې هيڅ يو سپورختېک داسې نه ؤ چې هغې دې غشي نه وي خوړلى پدې جګړه کې ديوسفزو تله درنه وه دجګړې په پاى کې شهباز خان دومره طاقت نه درلوده چې په اس سپور شوى وى کله چې ښهباز خان راستون شونو حالت يې ورځ په ورځ خرابېده اوو دسرټپ يې دښه کېدو ؤ

دټپونو سره فلج شوى هم ؤ دجګړو ځخه پنځه ورځي وروسته دپنځوسوکالو په عمروفات شو. دشهباز خان څلورزامن وو . جميل بيک اوخوشحال خان يې له يوې مور ، شمشيرخان اوميربازخان يې دبلې مور. خوپدې څلو ر واړو زامنو کې خوشحال خان مشرؤ ، همدرانګه دقبيلي اوپښتني دودونوسره سم خوشحال خان دقبيلې مشر اوسردار وټاکل شو، په دغه وخت کې خان اته ويشت کلن ؤ ، پدې کارکې ورسره تره بهادرخان هم موافق واو نوره کورنۍ يېهم ترشا ولاړه وه . اوملا ترې يې ترې کاوه . دسردارۍ څخه څلويښت ورځې وروسته دخان ټپ ښه شو .اوديوسفزيو څخه يې دخپل پلاردغچ اخيستلو لپاره لښکر راټول کړ . که څه هم تره يې ورسره پدې کارکې مخالفت کاوه خو خان خپل ضد پوره کړه ، ديوسفزيو ځينې کلي يې وسوځل ، شااوخواکمالزيو امانزيو اوسه صديو چې داحال وليد ، نو ډيرژر يې شپږ زره کسيز لښکرراټول کړ اودختېکو پسې روان شو ل، ختېکو چې لښکر وليد بيرته ورپسې راوګرځيدل ، دواړه خواوې بيا په برناله کې مخامخ شوي ، يوسفزيو ماته وخوړه ، ډيره مرګ ژوبله وشوه ، اوزيات کلي وسوځيدل خوشحال خان پدې توګه دخپل پلار غچ واخيست .

وسوځيدل خوشحال خان پدې توګه دخپل پلار غچ واخيست اوکلي ته راستون شو . خوشحال چې کله کورته ستون شو نودهند دمغلي امير انور شهاب الدين جهان فرمان هم رارسيده ، چې ورته يې سرداري اومنصبداري ورکړې وه

دکانګړې سوبه : خان ته دقبيلې دمشرۍ اوسردارۍ سره سم دهزارې مغلي واکمنو ته ډيرمهم خدمت دکانګړې سوبې برابر کړ چې داپېښې لڼډه داسې د ي:

راجه جګهت سنګهـ دپيتهان زميندارؤ . دده زوی راجاروپ ته دپاچا له خوا نه دکانګړې دغره لمنو فوجداري ورکړل شوې وه ،دده دفوجدارۍ پرمهال دزميندارو تحفې شاهي دربار ته ريدې راجاروپ اوازه خپره کړه چې دده اودپلار راجا جګهت سنګهـ ترمنځ خوابدي رامنځته شوې ده.

خو له بله پلوه راجا جګهت سنګهـ له پاچا څخه غوښتنه وکړه که چيرته دکانګړې دلمنو فوجداري ماته وسپارې نودزميندارانو نورې بقاياوې چې څلورسوه زره روپۍ کيږي ،هرکال شاهي خزانې ته سپاري .

پاچا دراجا جهګت سنګهـ غوښتنه ومنله اودنوموړې سيمې فوجداري يې ورکړه خوراجا په ښکاره د پاچا په ګټه اوپټه دبغاوت لپاره کار کاوه .لومړنې کاريې دتارګړدودکلابيا جوړونه اوهغه يې خپل مرکز غوره کړ .

د غه کلا په ختيځ پنجاب کې دچنبې دښار په جنوب ته ډلهوزی جنوب ختيځ ته پرته ده .

ديادونې وړ ده .

چې راجا جګهت سنګهـ پدې سربيره دوې نورې کلاګانې هم درلودې چې يوه يې د" نورپور" اوبله يې د" مئو" چې دا دوه کلاګانې دتارګړهـ جنوب لويديځ ته دچنبې دحدودو څخه دباندې پرتې وې .

کله چې پاچا دراجا جگهت سنگهـ له دغو شیطاني عمل څخه خبر شو، نو دده دځکولو لپاره یې درې لښکرې ، دسیدخان جهان ، سیدخان او اصالت خان په مشرۍ وټاکلې اوددې دریو اړو لښـکرو مشـر یا قومندان یې خپل زوی شـهزاده مراد بخش وټاکه چې وروسـته بهادرخان اوهیله هم د پاچا په امر له درې زرو پیاده اودرې زره پلو سـره شـهزاده ته ورغی دغو فوجونو نور

پور کلا ووهله اومخکې ولاړل . راجا جگهت سـنگهــــ دمقاومت لپاره دتاراگړهـ

کلا ته ورغی ، داکلا دیوه غره دپاسه جوړه شوې وه اوډېر استحکامات یې درلودل چې نیول یې اسان نه وو .

زمونږ خان هم دنورپور له فتحې څخه وروسته دخپل دوه زره کسیزه لښکر سره شاهي فوجونو سره یوځای شو، دی اصلاً داصالت خان په وسیله پدې مهم کې شامل شو.

خوشحال خان په خپل بیاض کې داپېښه داسې بیانوي.

ټولو هندوسـتاني پوځونو په یوه مورچه څو څو ځلې یرغل وکړ، ځانونه یې سـتړي کړل . سـتره جگړه وشـو ه اوهیڅا هغه په خپل تصـرف کې نه شـوه راوستلی ، هغوی چې زه ولیدم چې نوی راغلی یم .

نوددغې مورچې دنیولو کاریې ماته وسپاره ،ما هم دکوم عذرنه پرته دغه دنده ومنله ، زما سـره دوه زره تنه هندوسـتاني توپچیان چې یوه پیسـه هم نه ارزیدل وټاکل شول ، زه لاړم اومورچه مې ونیوله ، خویوځل دجگهت ټولو لښـکرو پرموږ برید وکړل .هغه هندوسـتاني توپچیانو چې زما سـره ملگري وو

په بدحالت سره يې تېښته وکړه اوتښتيدلو کسانو مخامخ ځانونه لوی پوځ ته ورسول چې زما په ملګرو کې هم چې کوم يوبې زړه ؤ نوهغه هم وتښتيده په پای کې زما ســره پنځوس تنه ځوانان چې په مورچه کې پاتې شــوي وو مـاتـه يې وويـل چې ډيرو خلکو پرمونږ داحمقـانو فکر کړی دی نن ورځ دجګړې ورځ نه ده ، دځان ســاتنه غنيمت ده ، ما وويل چې دا زما لومړنی خدمت د ی اود ټولو هندوستانيانو سترګې پرما لګيدلې دي ، پدغه شان تيښته کې مړينه پرژوند ښه ده. دغو ملګرو هم مړينه غوره کړه او ويې ويل چې ته مړينې ته ترجيح ورکوې ، نو مونږ هم پرځان مړينه منلې ده ما ورته وويل چې ترهغې به جګړه کوئ چې مړه شي ، چې خلک مو دخير په دوعا کې ياد کړي، کله چې دښــمن زمونږ دلښــکر ماته وليده نومونږ ته نژدې راغلل ، مونږ هم په يوځل حمله وکړه ، خبره دغشــو اوټپک نه تيره شــو ه تورې اوخنجر ته وار راورسيد ، کله چې دلاس اوګريوان جګړه پيل شوه ،نو دښمن په تيښته پيل وکړ، ډيرخلک دتيغ نه تيرشول .

اوهغه کسان چې پاتې شول نوهغوی په ځنګل کې پټ شول اوبيا نوهيلۍ زمونږ مورچو ته مخه ونه کړه .

په همدغه وخت کې خوشــحال دبهادرله لښــکريانو ديوې بلې مورچې په ســاتنه کې هم ميړانه وښــوده اودمورچې په ســاتنه کې بری ورپه برخه شــو. پدغې پيښه کې دخوشحال خان دټولو کوښښونو وينا پاچا ته وشو ه اوپاچا ده ته فاخره خلعت ورکړ اومنصــب يې ورزيات کړ، ددغې پېښــې تاريخ ۱۰۵۱ هـ ق کال ښودل شوی دی.

## ۴ . د بلخ اوبدخشان جگړې:

د ۱۰۵۵۰ هــ ق ذیحجه چې د" ۱۶۴۲" م کال سره سمون خوري ، شاه جهان شهزاده مراد بخش له پنځوس زره پلي اولس زره پیاده پوځ سره دبلخ اوبدخشـــان دنیولو لپاره وټاکل چې لوی لوی مســـلمانان اوهندو امراهم ورسره ملګري وو .

شهزاده امرکړی ؤ . چې څه لښکر دي دپېښورله لارې اوڅه دې هم دبنګښو له لارې ولاړشي .اوپه کابل کې دې دواړه خواوې سره یو ځای شي همدرانګه دشرقي افغانستان قبایلو لکه :

ککیانیو ، مامنزیو ، اپریدیو ، بنګښـــو ، غوریه خېلړ او ورکزیو ته هم دلښــکر دبرابرولو امر شــوی ؤ . په خوشــحال خان یې هم د زرو تنو پلیو اوسپرو درا ټولو کړی ؤ اودضرورې لګښـتونو لپاره یې ورته نهه زره روپۍ هم ورکړې وي .

ددې جګړې علت څه داســې ښــودل شــوی دی – دتورن حمکران نـذر محمدخان په هر وخت دهندي مغلي ســلطنت پرحدود تېری کاوه ،په بلخ اوبدخشان کې زیاته بد امنیي خوره وه ، د" ۱۰۵۵ " هـــ ق کال په اوایلو کې پاچا خپله غوښـــتل چې کابل ته ولاړ شـــي ، اود شـــهزاده ګانو څخه یوڅوک دبلخ اوبدخشان دتسخیر لپاره واستوي ، اصالت خان اوعلیمردان خان یې دمشهورو اوځینو ضروري کارونو لپاره مخکې کابل ته واستول .

پدې پېښــه کې خوشــحال خان هم داصــالت ســره ملګری ؤ ، اودهندوکش څخه واوښت درې شپې یې دغښـي په سر تېرې کړې اوبیا داصالت خان ســره اندراب ته ورســید کومې مقابلې چې لښــکرو دمقامي خلکو ســره وکړې دخوشحال خان زیار اوکوښښونه پکې څرګند دي .

ټول شاهي لښکرو وروسته دچور او تالان څخه بیرته راستون شو اوځه کسان یې هم له ځان سره راوستل ، دپنجشیر له لارې کابل ته ورسید . لس پنځلس ورځې یې په کابل کې تېرې کړې .

په دغه وخت کې اصالت خان لاهور ته تلونکی ؤ ، نو خوشحال خان ته یې هم وویل چې دده پسې لاهور ته ولاړ شي .

خوشحال خان دجلال اباد له لارې دبېړې په وسیله دسیند له لارې خپلې سیمې ته روان شو او له هغې ځای څخه د اصالت پسې لاهور ته ولاړ . باچا ورته په منصب کې ( اضافه والي راووست ، اودخان دقبیلې لس دولسو تنو ته یې منصبونه ورکړل . درې میاشتې په لاهور کې پاتې شو او بېرته له هغه ځایه افغانستان ته راغي .

ددې پېښې دنګرانی لپاره شاه جهان خپله " ۲۳" تاریخ حسن ابدال ته ورسید ، له هغه ځایه یې شهزاده ته " خاص خلعت " اوفرمان ور واستاوه او ورته یې لیکلي وو . څومره زرچې کیداشي له پیښور نه کابل او له هغه ځایه خپل مقصود ته ځان ورسوي . لښکریې له امر اوو سره په دواړو لارو کابل ورسیدې ، شهزاده هم دپیښور نه کابل ته ورسید . او بیا له کابله روان او په پایې منارکې یې مرکز ونیو ، ځینې امراء یې ولیږل .خوشحال خان خپل زیات شمیر کسان بهادرخان ته پریښودل او خپله دپنځوسو سپرو او څو پلوسره په پنجشیر کې موقف درلود .

غاښې له واورو څخه ډک ؤ ، اصالت خوشحال خان ته امر وکړ چې دراچپوتانو ترشا لاړ شي ، خوشحال خان له څو ځوانانو سره له واورو ډک غاښي څخه واوښت ، دغاښي بل اړخ ته یې په یوه څمڅمه کې ځای ونیوه دخوراک لپاره ورسره څه نه وو . خوشحال خان او کسانو یې دلوږې او سړو بدحال درلوده ،سیند غاړې ته راغلل ته راغلل هلته یې لرګو ته اورواچوؤ

، اوشاوخوايې کښيناستل ، خوشحال خان اودس وکړ اودوه رکعته لمونځ يې وکړ، اودلوی خدای (ج) دربار تهيې دوعا وکړه چې ای مســـــبب الا سبابه زمونږ درزق دروازه پرانيزه خدای (ج) يې دوعا قبوله کړه.
اوديوه شــخص څخه يې پســـه واخيســـت ، اوهغه يې ذبح کړ وروســـته بيا خوشـــحال خان داصـــالت خان اوبهادرخان دځايونو پته ولګوله ، اود خپلو خلکو ســره يې ځان ورســاوه ، پدغه وخت کې خوشــحال خان داصــالت خان ســـره اندراب ته ولاړ اوله هغې ځای نه نهرين ته ولاړ داوخت دشـــهزاده لښکرهم هلته ورسيد.
دخوشحال خان دلښکردرسيدو سره سم اصالت خان ده ته دمقامي خلکو دســـرکوبۍ امروکړخو دســـيمې هزاروو يې بې لـه جګړې خپلې مورچې پريښـودې . خوشـحال خان يرغل وکړزياته مرګ ژوبله وشـوه زيات غنيمت يې لاســـته راوړ اوځيني خلک يې ژوندي ونيول بنديان يې اصـــالت خان ته وسپارل شول اوغنيمت مالونه يې خپلومنځونو کې وويشه .
همدامهال اصــالت خان خوشــحال شــهزاده ته وروســت شــهزاده خوشــحال خان له هغه سره کندز ته واستاوه ، اوله کندوز څخه تاشقرغان ته ولاړل بيا امام صـاحب اوله هغه ځای څخه دبلخ په لوري مخه وکړه ، داوخت شـهزاده هم دبلخ خواته خوځيدلی ؤ همدا مهال ورته
دنذر محمد خان دباچا خط ورســـيد داخط ايلچي نذرمحمد خان ته ورساوه
نذرمحمد خان داومنله چې کله شـهزاده بلخ ته راشـي ، نو بلخ اوبدخشــان دواړه به ورته حواله کړي . دجمادي الاول په "۲۸" شهزاده له امراوو اوپوځ سره په ډيره دبدبه دبلخ خواته روان شو .

شــهزاده ځواب ولیږه چې نذرمحمد خان ورســره ملاقات وکړي خو هغه دهمدې نه وتښتید اوښارېې پرېښود ، دنذرمحمد خان دتعقیبولو وظیفه یې اصـالت خان اوبهادرخان ته وســپارله چې په دې کې اصـالت خان سـره خوشـحال هم ملګري ؤ، دشـپې مهال یودبله څخه نادرکه شـول، شـمشـیر خان ،علاول خان اوخوشحال خان دریواړو مشوره کوله چې څه باید وکړي ، خوپدې باندې سره راټول شو ل چې خپله لټه باید جاري وساتي.

هماغه ؤ چې دسهاردلمانځه وخت کې یې بېرته اصالت خان اوبهادرخان وموندل ، په دغه وخت کې خبرراغی چې نذرمحمد خان په شــبرغان کې دی ، سره له دې چې اصالت خان اوبهادرخان سره دپاچاهي لښکر کم ؤ.

خو دواړو خانانو فیصـــله وکړه چې جنګ به کوي ، دشــبرغان په لور وخوځیدل نذرمحمد خان ماته ومونده ازبکان وتښـــتیدل اصـــالت خان اوبهادرخان .شـــپې ورځې په شــبرغان کې واوســـیدل .په دغه وخت کې دشـــهزاده له خوا نه حکم راغی چې بهادرخان دې ، اندخوی پرلورې کوچ وکړي . بهادرخان هسې وکړل . درې ورځې یې هلته تیرې کړې اوبېرته ورته دراستنېدو حکم راغی .

له دې څخه ځرګندیږي چې جنګونو کې هم له کابله ترشــبرغانه اوبیا یوڅه دمخه انوخوی ته نژدې زمکو پورې ځایونه ترپښـــو وویســـتل ، خپلې کارنامې اوکوښښونه یې ځرګند کړي دي.

## ۵ . د بنګښو سره جګړه :

پـه (۱۰۶۳-۱۰۶۴ یـا د(۱۶۵۲ )ع کـال دســـپتمبر لـه دویمې نیټې نـه د(۱۶۵۴ ع) کال دنوامبر ترلومړۍ نیټې پورې دبنګښو دقبیلې دیوه مشر یا سردار شیرمحمدخان کوهاټې سره جنګونه روان وو. ددې پېښو سبب دا ؤ چې شــیرمحمد خان دپاچا څخه په یوه کال کې د" ۳۰۰۰۰ " دیرش زرو

روپیو په بدل کې دترې تربولاقو سیمې غوښتې ، پخوا دغه سیمې دبنګښو
پورې تړلې وې خوپه ۱۰۴۷ هـ کې ترې اوبولاقو مشرانو دشهبازخان څخه
وغوښتل چې دغه سیمې ښېلي کړي، دغه ځایونه دبنګښو له سیمې څخه
جلا شوې ،لومړی دشهبازخان او وروسته بیا دخوشحال خان دجاګیرداری
لاندې راغلې ان تردې ان تردې چې په " ۱۰۵۲ " هـ کې شهزاده داراشکوه
ددولت بیک قاقشال اومیرزاخان کوهاټي په وینا دغه سیمې دخوشحال
خان دجاګیرداری څخه لېرې شوې .
کله چې خوشحال خان اونورو خټکو ته دبنګښو دمشراراده مالومه شوه ،
نوپه خپلو کې یې سره مشوره وکړه ، دترې اوبولاقو خټکو خوشحال خان ته
یوپیغام ولیږه چې دخپلې کورنۍ یوغړی
راوا ستاوی مونږ درسره مرسته کوو، خوشحال خان خپل تره ښادي
خان له ځوتنو سپرو سره ولیږه ،خټکو هم دخپلې ژمنې سره دهغوی
مرستې ته ملاوتړله .دختکواوبنګښو ترمنځ جګړې پېل ترې اوبولاقو
خلکو دشیرمحمد خان یوتن وواژه اودبنګښو یوځوتنه نورهم ووژل شول
وروسته شیرمحمدخان یوبل لښکرراټول کړ، چې خوشحال خان
دشیرمحمدخان دفوځې تیاری څخه خبرشو نوخپل مشرتره بهادرخان یې
دخپل مشر زوی اشرف خان اوسره دیولښکر دبنګښو مقابلې ته ولیږه
،شیرمحمدخان دخټکو سره دمقابلې لپاره دکوهاټ څخه بهرشو، دجنګ
په پیل کې دشیرمحمدخان تره چې بهادرخان نومیده دګولۍ په لګیدو
سره دجګړې په میدان کې ووژل شو ، پدې جګړه کې داشرف خان په ښه
میړانه خټک بریالي شول اشرف خان غوښتل چې بنګښ تعقیب کړي
خوپلاراوتره یې ورته اجازه ورنکړه ، ددې قیادت لاندې بنګښو ته بله ماتې

ورکړه چې پدې جګړه کې هم دبنګښــو درې ســوه کســان ووژل شــول اوډیر مالي زیاتونه هم ور ورسیدل .

## ۶ .دیوسفزیو سره جګړه :

له دغو پورته پیښــوڅخه وروســته خوشــحال خان دامانزیو اوکمالزیو ســره دهغې له جملې څخه یکې لوی لوی سرداران هم شامل وو. پدغه جګړه کې ملک جانم امازي ووژل شــو اوملک پیرو کمالزی ونیول شــو په اټک کې دژول شویوکسانو دسرونو څخه ځلي (کله منارونه ) جوړشول.

## ۷ .د تیراجګړه :

په " ۱۰۷۰" هــــ ق کال دتیرا اپریدیو او ورکزیو په تیراکې شــورش اوبدامني رامنځته کړه ، تردغه وخته پورې مهابت خان میرزا لهراســپ ، دمهابت خان زمانه بیګ زوی دکابل صوبه دار ؤ چې د شاه جهان دوکمنۍ په وروســتیو کې مقررشــوی ؤ،دپیښــور مســتوفي میریعقوب ته یې دیوه فوځ مشــري ورکړه اودباغیانو دټکولو لپاره یې تیرا ته ولیږه ،میریعقوب چې دخوشــحال خان ســره یې نژدې اړیکې لرلې ،هغې ته یې له ځان ســره دتګ بلنه ورکړه ، پدغه وخت کې خوشــحال هم دپا چاهې پوځونوســره یوځای شو.

پاچاهي پوځ دباغیانو پرضــد بریالیتوبونه ترلاســه کړل ، خوشــحال خان د" ۱۰۷۰" هـ ق کال درجب په میاشت کې چې د" ۱۲۰۰" ع کال سره سمون خوري له تیرا نه دکوهات پر لارې بیرته ستون شو.

دلته دبنګښــو دســردارشیرمحمدخان مور " بي بي دور" چې دخپل زوی دنشتوالي په صورت کې یې دقبیلې دمشرۍ کارونه کول ، خوشحال

خان میلمه کړ. شیرمحمدخان په دغه وخت کې دمهابت خان سره دشخصي مخالفت یا دحکومت نه دسرکشۍ په سبب گناهکاراوپه هندوستان کې ؤ.

## ۸. له یوسفزیو سره جگړې :

داورنگزیب عالمگیر دواکمنۍ په لومړیوکې یوسفزیوخپلې باغیانه سرگرمۍ اوحملې جاري وساتلې اووخت به یې دحکومت دپلویانو سره نښتې کولې ،خوشحال خان دتیرا دجگړې څخه وروسته په " ۱۰۷۰ " هـ ق کال یوسفزیو ته ماتې ورکړه ،پدې جگړه کې دخان زامن اشرف خان ، سعادت خان اوبهرام خان هم ورسره وو ، چې له دوي څخه اشرف خان دپاملرنې وړمیړانه اوغیرت وښوده.

بهاکوخان څه دداراشکوه دپلوۍ په وجه اوڅه له خوشحال خان نه دخپلې زخمي کیدنې اودخپل ورور سیدخان د وژل کېدو دغچ اخیستو په سبب په "۱۰۷۲" هـ ق کال د" ۱۲۲۱۰" م کال داگست " ۲۷ مه د" ۱۲۲۲"م داگست " ۱۵" داکوزیو اومندړو یولوی لښکر جوړکړ ، ډیري بیړۍ یې ددې لپاره جوړې کړې وي چې په همدې بیړیو کې به کښیني خیراباد ،نوښار،نړۍ اونورو کلیو به یرغلونه کوي. یوه میاشت دغو جگړو دوام وکړ ،بالاخره بهاکوخان ماتې وخوړه اوناکام بیرته ولاړ.

## ۹. دباغیانو سره جگړه :

په ۱۰۷۳ ه ق کال د۱۲۲۲ م کال داگست دمیاشتې ۱۲ نېټې نه تر ۱۳۲۳ ع کال داگست دمیاشتې ترڅلورمې نېټې ) پورې هم دسرکښو یوسفزیو اود دوی دپلویانو گوجرو سره جگړې وشوې چې پدغو جگړو کې دختېکو تله درنده ښکاري دپورته ذکر شوؤ جگړو څخه پرته څه نورې کوچنۍ اوسترې جگړې وروسته هم دیوسفزیوسره وشوې، خوباغیانو ته

کومه ګټه نه وه ، په هره حمله اوجګړه کې به دحکومت دپلویانو لخوا نه مات شـــول ، او په هغوی به یې بریالیتوب ترلاســـه کړ. په همدې توګه یېد پایتخت نه ډیرلېرې د کابل دصـــوبې په یوې بدامنه ســـیمه کې نوي حکومت ته وقارترلاسه شو .

داوه دپښتو په ضد اودمغلو سره په همکارۍ دخوشحال خان مبارزه دپورته جنګونوجګړو ،مرګ ژوبلې څخه مالومیږي چې خوشـحال خان خپل زیات عمر دپښـــتنو په ضـــدمبارزه کې تیرکړی اوزیات پښـــتانه یې دتورې دتیغ څخه تیرکړیدي ، حتی د پښـــتنو دککریو څخه یې منارونه جوړکړي دي ،خوشـــحـال خـان دعمرپـه آخرکې دافغـان پـه ننـګ توره وتړلـه اودمغلو پرضـدیې مبارزه شـروع کړه دعمرزیات تیریدو له امله یې مبارزه نیمګړې پاتې شوه پدې باب خوشحال بابا په خپل یوبیت کې هم داسې یادونه کوي.

چې پښتون شوم په داهسې سپینه ږیره (۱)
نورمې خدای (ج) نه کړه مغل وایم په ځیره

نو دپورتـه بیـت څخـه څرګنـدیږي چې خوشـــحـال خـان خپـل ټول عمر دمغلوخدمت کې تیرکړو اودعمر په اخرکې یې بیا دپښـــتنو ســـره ملاتړ اعلان کړی یانې دځوانۍ مرحله یې دپښتنو په ضداودسپین ږیري توب یا بوډا توب مرحله یې دپښـــتنو په ملاتو کې تیره کړیده . خوپه همدې لږ ه موده یا عمرکې یې دپښتنوڅخه سخت ملاتړ کړی دی پښتانه یې له زیاتو ظلمونو، شـــکنجو اودزمـانې دنـاخوالو څخـه بـه بچ ســـاتلو کې زیـات کوښـښـونه کړیدي همداخوشـحال ؤ چې دمغلو امپراتوري یې رنګه کړه ، پښـــتانه یې دســـتعمار څخه خلاص کړل ، دمغلو ولجو اوغلامۍ څخه یې پښتانه وژغورل په لږ عمر یا لږ وخت کې یې زیات کاروکړ دستایلو وړ دی دهر وخت لپاره .

# دویمه برخه

## د مغلو په ضددخوشحال خان مبارزه

که دلوی خان تیره مبارزه یا دپښتنو په ضد مبارزه وکتل شي ، نو داسې ښکاري چې داکاردروغ دي خو که اصلي موضوع یاحقیقت ته سړی نظرواچوي نوداسې ښکاري چې داکاردروغ دي خوکه اصلي موضوع یاحقیقت ته سړی نظر واچوي نوداسې مالومیږي چې دهر څه رښتیا دي ، وبه ګورو چې دخوشحال بابا دغه مبارزه څنګه اودکوم ځای څخه شروع شویده .

لنګرکوټ : دخوشحال بابا دیوه بیت څخه داسې مالومیږي چې دخوشحال بابا لومړنۍ مبارزه دلنګرکوټ دودانولو څخه شروع شویده ، هغه په خپل یوبیت کې داسې وایي :

لنګرکوټ مغلو سازکړ زه په ننګ بیا دافغان شوم

دپورته بیت څخه معلومیږي چې لوی خان دلنګرکوټ دجوړیدو سره دفغان په ننګ توره تړلې ده ، خواړینه بولم چې دغې پیښې په اصلي موضوع باندې وپوهیږو ، چې څنګه دغه پیښه رامنځته شوه اوخوشحال خان بابا پکې څه کړي دي .

لنګرکوټ جوړیدل : هغه وخت چې مهابت خان روه پښتونخوا ، یا افغانستان ته راورسیده نودپاچا دحکم سره سم یې په ګړهي کپور نومې ځای کې دیوسفزیو دد فاع په خاطر دلنګر کوټ په نا مه دکلا جوړولو غوښنه وکړه ، خوشحال خان ته یې هم دیوزریزه منصب اودیوسفزیو دسیمې دسرداری وړاندیز وکړ. اودکلا په جوړولو کې یې ترینه مرسته وغوښتنه که څه هم لوی خان دپاچا څخه زیاتې شکنجې اوبې ګناه ظلمونه

لیدلي وو، په کلکه انکاروکړ او ورته یې وویل چې پنځه سـوه کاله مې ددولت په خدمت کې تیرکړل ، یوسـفزي باغیان وو ماهغو ی ووژل اوله سـرونو څخه مې ورته څلي جوړ کړل ، خوپه اخر کې زه بې ګناه بندي شـوم زما کورنۍ دپناه لپاره خوره وره شوه خودد ښمنیو سره بیا ګناه بندي شوم زما کورنۍ دپناه لپاره خوره وره شـوه خو ددښـمنیو سـره بیا هم یوسـفزیو زما پکاررا غلل ، زه څنګه داسـې کاروکړم . اودپاچا لپاره هم دانه ښـایې چې داکلا ودانه کړي ، ځکه یوسـفزي یوه لویه قبیله ده د دوی په منځ کې دا کلا ودانه کړي، ځکه یوسفزي یوه لویه قبیله ده ددوی په منځ کې داکلا نشي ټینګیدالای ، دکارپای به خرابه وي د دوی لپاره دلته یوازې دنوښـار تانه کافي ده ، محبت خان دخوشـحال خان دغه نظرومانه ، اوپاچا ته یې غوښـتنلیک واسـتوه چې دکلا دودانولو نیت پریږدي ، خولدې څخه پټ اومخکې شـمشـیرخان ترین پاچا ته لیک واسـتوه چې ددفاع لپاره ددغې کلا جوړول ډیرضروري دي .

پاچا دشـمشـیرخان خبره ومنله ، اومحبت خان ته یې امروکړ چې کابل ته ولاړ شي ، اودکلا په جوړولو شروع وکړي ، په (۱۰۸۰) هـ دپاچا په حکم کلا سـرته ورسـیدله ، خوشـحال بابا بیا ددغې کلا جوړیدو اودیوسـفزیو څخه ملاتړ یواوږد نظم په دوه بیتونو کې داسې کوي .

لـنګرکوټ مغلوساز کړ     زه په ننګ بیا دافغان شوم

که یوسف وو که مندړ وو     زه د دواړو نګهبان شـــوم

دایمل خان شورش : یوځل پښتانه مشران دمحمدامین خان د صوبه دارۍ په دوران کې د ده لیدو ته راغلي وو، په دغه وخت کې دمحمد امین خان سره دکنړ فوجدار حسین بیک هم حاضرؤ ، محمد امین دشراب، په څښلو بوخت ؤ ، دنشـې په حالت کې ورته فوجدار یادونه وکړه چې دنواب سـپي

سلام ته راغلي دي ، ټول راغلي پښتانه د صوبه دار له رویې اودفوجدار له دغې خبرې څخه سخت خوابدي شول په دغه وخت کې یوه بله پیښه هم رامنځ ته شوه ، چې هغه دیوې پراچکۍ پیغلې بې عزتي وه ، تللې وه ، سپاهیانو دغه نجلۍ بې عزته ، دغه پیغله دفوځي پوستې شاوخواته دڅه پلورلو اوپیرودلو لپاره تللې وه ، سپاهیانو دغه نجلۍ بې عزته کړه ،ساپوددغې نجلۍ دبدل اخیستلو په خاطردسپاهیانو سره کړه ، ساپو ددغې نجلۍ دبدل اخیستلو په خاطر دسپاهیانو سره جګړه پیل کړه ، په جنګ کې سپاهیان مړه اوساپیان وتښتیدل ، حسین بیګ له ساپیو څخه وغوښتل چې قاتلان ده ته وسپاري ، خود ساپومشرانو په غوږ ځواب ورته وویل چې ستاسو سپاهیانوکوم کارکړی همدا یې سزاده ، حسین بیګ غوصه شو ، دفوځي چوکۍ خواوشا نورپښتانه یې ارټول کړل اوپرساپویې لښکرکشي وکړه ، کله چې پښتانه راټول ، نودلښکرکشۍ پوښتنه یې یوبل څخه وکړه ، داصلي پیښې څخه خبر شول ، نوساپوته یې ځواب واستوه چې تاسو ښه کارکړی، مونږه ستاسي دښمنان نه یو .

کله چې لښکرسره تاسې مخامخ شوی ، مونږ دماتې په بهانه بیلېږو ،ستاسې چې څه زړه غواړي له مغلو سره یې وکړئ ، پښتنو همداسې وکړل مغلو دمقابلې تاب رانه وړ اوپه پیښه بریالي شول ، زیات لښکریان مړشول ، له ماتې څخه ورسته حسین بیګ پښتانه مشران ځانته راوبلل ، پښتانه مشران چې دحسین بیګ ډیرې ته راورسیدل ، ناڅاپه اوازه شوه چې ټول مشران یې ونیول ، پښتنو سم دستي دیره محاصره کړه چې پدېکارسره دپښتنواومغلو ترمنځ بې اعتباري نوره هم زیاته شوه ،مشران خپلو کورونو ته ستانه شول ، خوله ځانونو سره یې مشوره وکړه چې نورپه مغلو اعتبارنشته ،باید چې خپل کورونه خوندي وساتو ، پدغه شپو کې

محمد امین خان په پېښور کې ؤ ، حسین بیګ نورهم وارخطا شو ، اوټولې پېښې يې ليکلې محمد امين خان ته ولېږلې .

۱ . دخیبر ستره پېښه : دغه پېښه ډېره لويه وه ،خوشحال بابا هم ورته په خپله یوه قصیده کې دساې اشاره کړې ده .

دخیبر دره يې سره کړله په وينو — پــــه کړپه یې هم راوان کړ دندو کار

اول جنګ دلوړې شـــادتاتـــرو ؤ — چې ځلويښت زره مغل شول تارپه تار

ددغې سترې پېښې اصلي موضوع دارنګه وه : په هغه وخت کې صوبه درا داوړي موسم په کابل اوداژمي موسم په پېښور کې تيراوه ، په دغه وخت چې تاريخ پوهان دغه کال (۱۰۸۲ هـ ق ) بولي ، محمد امين خان ديخنۍ موسم په پېښـــور کې تيرکړی ؤ . اودکابل په لوريې کوچ کاوه چې دحســـين بيګ خط ورته راورسيد ، کله چې صوبه دار ماتې ځخه خبر شو نوسخت په غصه شو صوبه دار خپل فوج سره دکابل په لورراوان شو چې ورسره دسيمې يوشـــمير ســـرداران ، اورکزي ،اپريدي اوځيني نورافغانان ســـرداران لکه خوشحال خان خان اواربابا مستجاب مومند هم شامل وو .

محمد امين په جمرود کې له افغان مشرانو سره مشوره وکړه ،خو خوشحال خان ترينه وغوښتل چې له افغانانو سره جنګ اوسخته رويه بايدونه شي ، ځکه چې دوی دحکومت دمقابلې نه دي ، محمد امين خان دپښـــتنو ســـره خوشـــحال خان دهمدردۍ نه پوه شـــو ، نويي ورته وويل (( يوســـړي خلک ليدل چې ماروهي اوپه کاڼو يې ولي ، دې سړي ماريې جيګ کړاو په توبره کې يې ځای ورکړ اوله خلکو يې وســـاته ،خوهمدې مارچې وخت پيداکړ خپل محسن يې وچيچه )) دمحمد امين خان دا اشاره خوشحال خان ته وه ، ځکه خوشـــحال خان ســـره ده دقيد دوران کې ښه کړي وو ،خوخوشـــحال خان چې داپيغورواوريد نوپوه شـــواوځواب يې ورکړ که دنواب داخيال وي نوله

ټولوڅخه لومړی زه ځم .شـاهي لښـکرپرمختګ وکړ، کله چې افغانانو ته دصوبه دارارادهڅرګنده شوه نودمقابلې لپاره يې تياری شروع کړ اودخپلو لښکروسره خيبر ته روان شو ل .دمغلو لښکرپدغه وخت کې څلويښت زره سپاره اودوه سوه زره پياده وو خوخوشحال خان دحکومت ځواک څلويښت زره ليکلي دی.

صـوبه دارمسـتجاب خان له ځينو نورو بارسـوخه کسـانو سـره مخالفو افغـانـانو تهواسـتول . او ورتـه يې وويـل چې دپوځ لپـاره لاره خوشـي کړي،خوجرګه ونه منل شو اوبيرته ناکامه راغله .

محمد امين غوښـتل چې دتوري په زوردلارې خوشـې کولو اودافغانانو دشـړلو لپاره دخپل پوځ سـره پرمختګ وکړي خوکله چې دغه لښـکرلنډي خانې (غريب خانې) ته ورسيدل نود افغانانو لښکرچې ،مومند ،شينواري اواپريدي پکې وو ، دايمل خان ترقومندې لاندې هررنګه مقابل ته تياروو .

شـاهي پوځ دښـي اوکين پوځ باندې دتيږو باران جوړکړ، دتيږو باران ډيرخطرناک تمام شـو اوشـاهي پوځ يې وارخطا کړ،سـړي پيلان ، اواسـونه يوپه بل ولويدل هندوستاني افغان ؤ ، دخپلو زياتو ملګرو سره ووژل شو.

نورپاتې ټول سپاهيان په شا شول ، دغې ماتې دافغانانو حوصلې نورې هم لوړ ې کړې .ملي پوځ بيا ځان تيارکړ اوپه مقابله يې پيل وکړ،لويه ورځ جګړه وشـوه ،په شـاهي پوځ کې چې کوم افغانان شـامل وو. هغوی دجنګ څخه ډډه کوله ،خويوازې خوشحال خان اود ددې سړيو دمغلو په طرفداری ديرز ياريوسـت ،خوبې ګټې ،خوپه اخرکې ملي فوج دډيرز يان اوتباهی څخه وروسـته دمقابلې تاب رانه وړو . او ورو ورو يې په تيښـته پيل وکړ ،خو محمدامين خان دخپل غيرت اوغرور سره سم نه غوښتل چې دجنګ

میدان څخه دې ژوندې وتښــــتي ، خونوکرانويې په ډيرزور اوزيارســـره دجنګ له میدان څخه ویوست .

مات لښــکرګډوډ په بیلابیلو لارو روان شــو ، خوپه پاتي لښــکرپه تاتره کې افغانانو بیا تباه کنه اوســـخته حمله وکړه فوج یې تارومارکړ. په جګړه کې دټول پوځ څخه ډیرلږخلک بچ پاتي شــول . په زرګونو مړه اونور بندیان شــو لدمغلو توله خزانه اومالونه دافغانانو لاسته راغلل .

دمحمدامین خان دکورنۍ ځیني غړي لکه یوه وړه لور، خور،موراوځیني نور ې ښـځي افغانانو اســيرې کړې وې ،خومیرمن ،زوی اودخورمیره یې مړشو.

خوشحال خان اومســتجاب مومند دپاتې پوځ سره دتاترې له لارې مخ په پیښوررروان شو ل،مستجاب مومند ،خوشحال اوزامن یې کوم چې له ده سره په جنګ کې موجود وو په دیرسختۍ سره پیښــورته ورسیدل کله چې دوی ورســيدل نوخوشــحال خان مســتجاب مومند دمشــورې لپاره ځانته راوغوښت خوهغه رانه غی.

که څه هم مونږه مخکې ولوســــتل چې خوشـــحال خان دمغلو ســـره زیات ضــدیت ســره هم پدې پیښــه کې دمغلو پلوی ؤ ســره له دې چې محمدامین دی دجنګ کولو څخه منع کړی ؤ ، خو خوهغه ورته پیغورورکاوه اوخپل احسانونه یې ورته یادول . خان ورسره دخپلې مشخصې دوستۍ له مخې ودرید ،یوافغان مشــرورســه دورنګي ونه کړه ، ښــه زړه دخلاصــه جنګیده خوبې فایدې مغلې فوځ دډیرزیان سره مات شو.

## د خوشحال خان ځینو سیموته ورتګ اوجرګې:

دخان په کورنۍ کې دبهرنیو لاســوهنو له امله مخالفتونه رامنځته شـــول دکشـــرزوی بهرام خان ســـره یې ځیني جنګونه هم وکړل ، له دغو

مخالفتونو اوجنگونوځخه خان تنګ شو اوځینو سیمو ته یې دورتګ اراده وکړه ، دغه جرګې او سفرونه خوشحال خان دلښکر دراټولولو لپاره کاوه ، دلته دمغلوځخه زیات په تنګ شو ، اونوریې نشول کولای چې دغه مخالفتونه اوشکنجې وزغمي هماغه ؤ چې په لومړي قدم کې یې له اپریدو سره جرګه وکړه .

**داپریدو سره جرګه** : همدغه وخت خوشحال خان ته دشاه بیګ له خوانه خطونه راورسیدل اوترینه غوښتل شوي وو چې په کوهاټ باندې برید کې ورسره مرسته وکړي.

خوشحال خان هم دریا خان ته لیک واستوه دریا خان خپل ورور تاتارخان اوځیني اپریدي خوشحال خان ته واستول ،خان ورته په راجګړکې میلمستیا وکړه اوله میلمنو سره یې جرګه وکړه ،په پای کې ټولو پرکوهاټ باندې دحملې فیصله وکړه . داجرګه په (۱۰۸۴ ) هـ ق کال شوې وه ، خان لښکر تیارکړ اوپرکوهاټ دحملې لپاره آدم خیلو اپریدو سیمې ته ترکندیالۍ پورې ورغی . دا وخت ملک لعل بیګ ، سعید خان اوملک خواص خان کوهاټي خوشحال ته راغلل .

اوورته یې وویل چې دافغاني ننګ خاطر وکړئ هغه مغل چې زمونږ ځای کې پراته دي هغه وباسئ ، خوشحال خان دکندیالۍ نه شابیګ ته سواره ولیږل او ورته ځواب یې ولیږه چې ستا مدعیان راغلي دي ته هم دلته راشه ځنګه چې ستا خوښه وي هغې به وکړو ، شپه تیره شوه خوشابیګ رانغی دوهمه شپه هم تیره شوه وروسته خوشحال خان یوخط اویوځو سپاره نورهم وروستول ، مګر هغه بیا هم رانه غی اوخوشحال خان ته یې یوخط راولیږه چې پکې لیکلي یې وو لعل بیګ اودانور ووژنه اوته په خپله کوهاټ ته راشه دکلا په نیولو کې درسره زه مرسته کوم خوشحال

خان د غه لیک داپریدو دټولې جرګې په مخ کې ولوســـت ، ټولې جرګې داخبره بده ومنله ،اوټول اختیاریې خوشــحال خان ته ورکړ خوشــحال خان لعل بیک اوســعید خان رخصــت کړل دشــابیک خط یې هم دوی ته ورکړ اوډیرپه خوشحاله ترینه ولاړل .

**۲ .په نوښــاربرید** : ددې حملې یادونه هم لوی خان په خپله یوه قصیده کې داسې کړیده .

بیا له پسه دنوښارد کوټ جنګ ؤ
چې مې وکېښ ترمغلوخپل خمار

غواړم چې ددې جګړې په موضوع باندې رڼا واچوم خوشحال خان له اپریدو ســره بله جرګه وکړه پدې جرګه کې په نوښــارباندې دحملې فیصــله وشــوه ، تاتارخان ددخوشــحال خان دکورڅخه دستنېدو سره سم داپریدو لښــکر تیــارکړو همــدارنګــه خوشـــحــال خــان هم دترې اوبولاقو خټکو لښکرراغونډ کړ اودخوړې خواته یې خوځاوه ، اوله هغې ځای څخه قرمزې ته اوبیا ډاګ اسماعلیل خیلو ته راغی .

په همدې وخت کې داپریدو لښکر هم راورسید اودواړه لښکرې سره یوځای شــولې ، دواړو لښــکرو شــمیره شپږ اوه زره ته رســیده ،دمشــورې څخه وروسته یې د ډاک اسماعیل خیلو څخه جبې ته وخوځیده ، اوله هغه ځایه جلوزوته راغلل ،لس ســواره یې دملک ســلیمان ترقومندانۍ لاندې ورکړل اودجلوزو په کورونو یې اورولګاوه .

بیا پیریانۍ ته ورســیده .پیریانی یې هم وســوځاوه اوله هغه ځایه دنوښــارخواته وخوځیدل .په رڼا ورځ دنوښــارکلا ته نژدې شــول ، خوشــحال خان دټوپکو ګولۍ په خپل لښــکروویشــلې ،اپریدي دجنوب ختیځ له لارې اوختکو دشمال لویدیځ له لارې پرکلا حمله وکړه .

په کلا کې دننه نږدې درې زره مغل اوافغانان موجود وو ، لومړی ختټک اوبیا اپریدي کلا ته ورننوتل د دواړو لوریو ترمنځ ســخته جګړه وشـــوه ، جنګ لا روان ؤ چې اپریدو دغنیمت مالونه اوړوته کړل ،اودکلا څخه دباندې ووتل .

ختټک یوازې پاتې شـول اودوی دکلا خلکو په شا وتمبول ،خوشـحال خان چې داحالت ولیده خپله دکلا د دروازې خواته روان شـو، په دغه وخت کې یې دوه زامن عبدالقادرخان او عابدخان هم ورسره وو .

د ښمن ددروازې د سرڅخه ډبرې اوغشي ویشتل ،خوختټکو ځوانانو دروازه ماته کړه.

اودننه ورداخل شــول ، زیاته مرګ ژوبله وشــوه دغنیمت مالونه یې ترلاســـه کړل ،خوشـــحال خان دکلا افغانان وبښـــل ،ځان غوښـــتل چې په نوښارکې پاتې شي، په مازدیګردکوچ نغاره ووهل شو.

ځکه چې اپریدو په کلا کې یوڅوافغانانی نیولې وې ، اوله ځان سره یې بیولې وې ، دهماغو ښځو دخلاصون پسې خوشحال خان هم وخوځید ، خوشحال خان وایې چې زما په زړه کې دهغوښځو احترام ؤ ،ټول اسیران یې خوشې کړل اوخپله بیرته راجګړته لاړ، ځکه چې خپله کورنۍ یې هــلته و.

## ۳ .د دوابې جنګ :

که څه هم خوشــحال بابا دغه جګړه په خپله قصــیده کې دویم جنګ ښـــودلی، خوپـه زیـاتواثرونو کې یې لیکوال دنوښــــاردجګړې پـه ســې ذکرکوي،داځکـه چې ددې جنګ پـه هکلـه پوره مـالومـات نـه شــتـه خو خوشحال بابا ورته په خپله یوه قصیده کې داسې اشاره کړیده.

## دویم جنګ میرحسیني په دوابه کې
## چې یې وتکېده سره لکــــــــه دمار

دنوربنـــارترجګړې څخه وروســـته دافغانانو دوهم لوی بری د دواوابې په سیمه کې دمغل پوځ ته ماته وه ، ددې جنګ په باره کې نورداسې معلومات نشته چې دلته یې راوړو.
دکړپې جګړه : همدارنګه دخوشــحال بابا دیوې قصـــیدې له مخې دغه جنګ څلورم ښودل شوی دی، چې خپله لوی خان په خپله یوه قصـیده کې داپېښه داسې راخیستې ده .

بیا له پسه جسونت سنګهـ شجاعت خان ؤ
چې ایمل یې په ګنداب ویوست دمار

دلته به دپېښې په موضوع باندې یوڅه رڼا واچو .
کله چې شـجاعت خان پیښـور ته راورسـید دیوڅو روځو پاتې کیدو وروسته دکابل په لوروخوځیده ،لښکرد(۱۰۸۴ ) هـ ق د ذوالقعده پر(۱۸) دکړپې له غښي تیریده ، چې ایمل خان په شاهي لښکرباندې حمله وکړه د دواړو خواوو ترمنځ سخته مقابله شروع شوه افغانانوپه شاهي لښکرګولۍ اوډبرې واورولې اودشــاهي پوځ دســاز اوســامان ســره یې مقابله کوله خودافغانانو دلښـکردمقابلې تاب یې ونه شـو کړای ، اودراتلونکي شـپې لپاره پاتې لښکر په شا ولاړ له هرې خوا پرې افغانانو حملې وکړې جسونت سنګهـــ چې داحالت ولید نو( ۵۰۰ ) سـواره یې له توپونوسره مرستې ته راولیږل . لدې څخه (۲۰۰) پاتې شول هغه هم له پاتې مغلي پوځ اوجوسنت سنګهـ سره وتښتیدل . اونورزیات پوځ له شجاعت خان سره پدې جګړه کې ووژل شول . لوی بری ایمل مومند ترلاسه کړ.

**۴. دکوهاټ ناکام برید** : ددې برید په هکله خوشـــحال خان په خپلو اشـــعاروکې څه ندي ویلي خوزه یې دلته راوړل ضـــروربولم. کله چې خوشـــحال خان احمدخان ته داپریدو دلښـــکرتیاری لپاره وویـل نودخوشـــحال خان او دریاخان ترمنځ دکوهاټ دبرید په هکله خطونه تیر اوبیر شوي وو.

دوی دواړو منلې وه چې دلوی اختر په ورځوکې به دکوهاټ په کلا برید کوو.

خودریاخان مخکې د مخکې نه داپریدو لښـــکر تیاراو دتاکل شـــوې نیټې څخه ځوورځې دمخ یې دکوهاټ په کلا برید وکړ، شـــیرمحمد خان بنګښ دمغلی حکومت په پلوي ســـخته مقابله وکړه اواپریدي یې مات کړل ، د دریاخان د ورور تاتارخان په شمول لږ اوډیر (۱۰۰) کسان ووژل شول ، مغلو شیرمحمدخان ډیرونازاوه ، ډیر انعامونه یې ورته ورکړه .

خوشحال خان په دغه وخت کې په چوتره کې دلښکرو په تیاری بوخت وو چې د دریاخان دناکام برید څخه خبرشـــو خو ده نه منله ، وروســـته بیا ورته معلومه شـــوه ددریاخان لخوا نه ورته خطونه راغلل او ورته یې لیکلي وو.

چې خپله راشـــه ده دخپل ملګري په خاطر یوځه ســـپاره ور ولیږل دغو سورو دبنګښو یوځوکلي وسوځول له دي څخه وروسـته خان کوښښ کاوه چې دختکو او اپریدیو لښکر راغونډ کړي اوپرکوهات حمله وکړي .

خودمخالیفینو دلاس وهنو له امله د خان خپلې قبیلې هم پدې برخه کې دمرستې څخه ډډه وکړه ، او داپریدو لښکرهم خورشو اودکوهاټ حمله هم پاتې شوه ، خوخوشحال خان دافکرکاوه چې دریاخان ته په زړه کې څه رخه پیداشـــوې ده ، او اراده یې وکړه چې دایمل خان اوخوشـــحال خان په شـــان

بری ترلاســه کړي، په همدې اســاس يې د خوشــحال خان لښــکرو ته انتظار ونکړ ، اوبريد يې وکړ چې نتيجه يې ناکامه شوه .

**۵. دخاپښ جنګ** : که څه هم دغه پيښــه دخوشـحال بابا په اشـعاروکې شـپړمه ياده شوې ده خان په قصيده کې ددې پېښـې په اړه داسې ويلي دي.

شپږم جنګ مکرم خان شمشرخان دواړه

چې ايمل کړل په خاپښ کې تارپه تار

اړينه بولم چې په اصلي موضوع باندې يوڅه رڼا واچوم د(۱۰۸۲) هـــ ق کال په ربيع الثاني کې يې مکرم خان ،ميرمحمداســحاق ، شــمشــيرخان اوميرمحمد يعقوب له لوی پوځ ســره د خاپښ دکوتل له لارې پرافغانانو دبريد لپاره وليږل ، مکرم خان دکړپې له لارې خاپښ ته مخه وکړه په خاپښ کې ايمل خان اودرياخان له مکرم خان او شــمشــيرخان ســره مخامخ ســره مخـامخ شــول اوددواړو خواوو ترمنځ جنـګ وشــو، مغلومـاتـه وخوړه شــميرخان د درياخان له لاســه ووژل شــو اومکرم خان باجوړته وتښــتيده ډيرشاهي پوځ له منځه لاړ په پاتې لښکرلاره کې افغانانوحمله وکړه اوډيره برخه يې تباه شوه ، له ځاني زيان سره مغلوته سترمالي زيانونه هم ورسيدل اوافغانانو زيات غنيمت لاسته راوړ .

**۶. د ګنبت جګړه** : ددې جنګونو په اړه داســې ندي ويل شــوي چې څوومه پيښـــه ده ،خوشـــحال خان ددې جنګ په باب يوه اوږده قطعه ليکلې ده دخپل زوی عابدخان زياته ســتاينه يې کړې ، چې يويوڅو بيتونه يې دلته .راوړم .

چې په توره يې شيرخان پريوست له اسه

په ميدان دعابدخان پهلواني وه

چې سرداردبنګښ پریوت خټک مات شه

په داهسې رنګ یې چارې حیراني وه

لاس په لاس یې انتقام دبابا واخیست

په داکارباندې سزا ثنا خواني وه

ښه ځوانان چې ګنبت په میدان ومړل

دهرځوان په زړه کې ننګه افغاني وه

پیښــه څه داســې وه : شـیرمحمد بنګښ دمغلي حکومت وفادراه سـړي ؤ ، دهمدې په وجه دبنګښو ټوله قبیله دمغلو خوا ته ولاړه وه خو خوشحال خان غوښـــتـل چې په دغـه ســیمـه کې دمغلو اقتـداراوعزمـت وغورځوي ، اودحامیانو قوت پدې سیمه کې کم کړي ، کله چې خوشحال خان دصوات څخه بیرته راوګرځیده لږې ورځې وروســـته یې له شـــیرمحمد خان ســره دجنګ په نیت لښکرتیارکړ اوله کنډیالی څخه تیرشو، اودکوهاټ سیمې ته ورننوت ، دې وخت کې دشیرمحمدخان سره هم څه خټک ملګري وو . نوځکه دی دخټکو په اعتماد مخکې ولاړ اوپه ګنبت چې دټېري په ســیمه کې موقعیت لري د دواړو ترمنځ ســخته جګړه شــروع شــوه . په جنګ کې (۱۴۰) تنه ومړل ،خوشحال خان اوزوی یې زخمیان شول ،دخوشحال خان بل زوی عابد خان هم دې جنګ کې موجودؤ ،ده په میدان کې سـم دسـتې اوزخمي یې کړ ، ددې پېښې تاریخ (۱۰۸۴) هـ ق کال دذوالحجې په نهمه ښودل شوی دی .

## خوشحال خان خټک د مغلو په بند کې:

په (۱۳۷۴هـــ) کال کې امیر خوافي چې خلکو په سـید امیر خان مخاطب کـاوه د کابل صوبه دار وه ده له اورنګزیب (ابو المظفر محی الـدین محمـد اورنګزیــب) سره وکتل د هغه له غوږه یې دا خبره تېره کړه چې تــر څــو د

ځمکـــو ځینـــې خاونـــدان نیول شوي نه وي تر هغې د رهدارۍ د باج د ممانعت احکام نافذېدای نـشي د دې غشي نښه په اصـل کـې خوشـحال خـان ختـهـك وه اورنګزیـب پـر تخـت د دویـم ځـل ناستي سره سـم (روژه ۱۰۷۰ -۱۰۶۹هـــــ) د غلــې او د ځینـــو نـــورو جنـــسونو د ټکـــس د معافۍ حکم کړی وه.

له دې حکم سره سم عـامو وګړو ته ډېره ګټـه ورسـېده او پـه سـر کـاري بودیجـه کې د **۲۵** لکـو روپـو کمـې راغلـی وه د دې حکـم اثـر پـه څرګنـد ډول ځمکـه لرونکـو (خانـانو) او جـاګیردارانو پـه ګټـو هـم پرېوتـه مګـر د دې خبرې هېڅ ډول شـهادت نـشته چـې د دې حکـم تـر جـاري کېـدو وروســـته خوشـــحال خـــان ختـهـك د څـــه ډول ســـرغړونې یـــا نافرمـــانۍ څرګندونـه کـړې وي بلکـې هغـه هـم همغـسې د حکومـت منونکی او وفادار وه او د حکومت له مخالفانو سره بـه یې جنګونـه کـول سـمه خبـره دا وه چې دا چل سید امیر خوافي د خپل مرستیال میر زا عبدالرحیم چـې پـــه پېـــښور کې وه او د خوشحال خان په منځ کې د خفګان او د خوشحال خان ترونـو بهـادر خـان او فیروز خان سره د سازش په سـبب جـوړ کـړی وه میـر زا عبـدالرحیم سـید امیـر خـان خوافي ته ویلي وو چې تر څو پورې ته یو څو لوی لوی سرې بندیان نه کـړې تـــر هغـــې ستا د صوبه دارۍ نقش نشي کېناستی او د خوشحال خـان ترونـو ور سـره پنځـوس زره روپۍ کړې وې سید امیر خان بادشاه ته ګونګه او مجملـه وینـا کـړې وه نـه یـې ورتـه د چا خاص سړي نوم اخیستی وه او نه یې د چـا د نیولـو اجـازت اخیـستی وه خو ورتـه یـې ووې چـې د لارې د ټکس د منع کېدو د احکـامو د پلـي کولـو لپـــاره د زور زیاتي د څرګندولو ضرورت دی کله چې باد شـاه ورتـه د دې اجازه وکړه نو پېښور تـــه راغی او خوشحال خان یې د سلا مشورې لپاره

پېښور تــه راوغوښــت د ( ۱۳۷۴هـــ) کال د څلورمې خور په وسط چې د جمعـې ورځ وه خوشـحال خـان پېـښور تـه راغـی دربار ته یې څواب ولېږه چې زه راغلم څواب راغی چې سبا دربار ته څان حاضر کــړه درې ورځې تېرې شوې خو دربار ونه شو په پای کې د صوبه دار سکرتر د ګجرات شیخ خوشحال خان ختك ته څـواب وکـړ چـې ماتـه د مـشورې لپـاره راشـه کلـه چې خوشـحال خـان ورغـی هغـه یـې ونیـوه او پنځـه منـی بېـړۍ یـې ور پـه پښو کـړ ې د خوشـحال ترونـو لـه صـوبه دار نـه خلعتونـه واخیـستل ، ختـك د دوی وژلـو تــه جـوړ شول خوشحال خان منع کړل د خوشحال په نیولو کې چې کومـو کسانو برخـه لرلـه د هغوی ذکر دی په خپلو نظمونو کې څای پر څای کوي خوشحال خان دوې میاشتې په پېښور کې وساتل شو کله چـــې یـــې د صـــوبه دار د پنځوسو زرو پیسو غوښتنه رد کړه نو د هندوستان په لور روان شو د (۱۳۷۴هـــ) کال د روژې په (۱۵مه) یا ( ۱۲مه) هندوستان ته ورســـول شـــو ، هلته د نوموړي ورورو میرباز خان تربور یې باقي خان او زوی یـــې ســـعادت خان مخکې تر ده رسېدلای وه او له محمد امـــین خـــان میـــر بخـــشي چـــې د اورنګزیـــب خاص نژدې کس او لوی منصبدار و سره لیدلي وو محمد امـین خـان او د خوشـحال خـان د زړور افسر اصـالت خـان وراره یعنـې سید میران المخاطب په میر خان د خپل خان زوی د خوشحال خان د خلاصـې ډېـر کوښـښ وکـړ خـو خوشـحال خـان خوشـی نـه شـو نـو میـــر بـــاز خـــان بـــاقي خـــان او سعادت خان بېرته هېواد ته راستانه شول، خوشحال خان د قید تقریباً دوه نـیم کالـه په دهلي او د جیپور پـه ریاســت کـې د رنتهبـور پـه کـوټ کـې تېـر کـړل د ذیعقـدې پـه پنځمه د رنتهبور له کوټ نه راوستل شو او بیا اګـــرې تـــه یـــووړل شـــو او هلتـــه لـــه بنـــده خوشـی کـړل شـو خـو په دې شـرط چې هېواد ته به نه ځي او همدلته نظر بند

وساتل شو خوشحال خان ختك د قيد او بند پر وخت په نظم او نثر كې ډېر څه ليكلي دي چې تر ټولو ارزښتمن اثر يې (دستار نامه) ده چې د لومړي ځل لپاره پكې د ساده نثر د ليكلو هڅه او دودونه شوې ده ، آخر هم د هرې شېپې پاى وې دى هم پر ( ۱۰۷۹هـ) كال له مهابت خان چې د كابل صوبه دار مقرر شوى وه سره يو ځاى خپل هېواد ته راغى.

۷ . **د ډوډې جنگ** : داجنگ دخان داشعارو اونورو خصوصياتو څخه اخري ښكاري . لوى خان پخپله يوه (۷۲) بتيزه قصيده كې ددې جنگ يادونه كړې چې زه يې دلته يوڅوبيتونه راوړم .

د گـــنبـــت غصه مې ووته له دله
خداى (ج) چې راكړ په ډوډه دفتحې كام
چې په مخ يې فتحه درومي عابدخان دى
پـــه هر ځاى دخپل بابا كا تازه نام
د قـــصيدې په پاى كې يې هم ددې جنگ په بارهكې دساېويلي دي

.

ددې جنگ نارې به درومي په ملكونـــه
پـــرې خوښېږي به همه پښتون په نام
چې ددې صوبې اواز وشي په هند كـــې
بيا بـــه غرېږ شي دبادشاه په خاص اوعام
چې په نام پښتون غوڅېږي دى خوښېږى
اورنگ زيـــب هسې بادشاه دى داسلام

قصـــيده ډيره اوږده ده ، دهمدې څوبيتونو په راوړلو بســـنه کوم ، راځو دپېښې اصلي موضوع ته چې دجنګ عامل څه اوخوشحال يې ولې دومره ستاينه کړې ده .

دګنبت دماتې څخه وروســته خټکو په بنګښــو باندې څوځلې حملې وکړې خوپوره غچ يې وانه خيسته په (۱۰۹۱) هــ ق کال خوشحال خان دشپږ اوه زره خټکو يولوى لښکرتيارکړ، اودبنګښو په سيمه يې حمله وکړه په جنګ کې ديوې ډلې قومنده دخان دلمسي افضل خان سره وه ، چې دښاري پورله لارې يې دبنګښــو په ســيمه کې پرمختګ وکړ،دبنګښــو په ځينو کليو يې چوراوتالان ګډ کړ، ډيرافراد مړه اواســـران شـــول ، څه چې ترينه بچ شـــول هغوى دډوډې په کلاکې پناه واخيســـته ،خودکلابندى څخه تنګ شـــول اوپناه يې شـــروع کړل ، په زورکلاته داخل شـــول (۱۲۰) تنه ووژل شـــول او پاتې افرادو ته پناه ورکړل شـــوه ،اســـران يې ازاد کړل اوخټکو ډيرغنيمت مالونه لاسته راوړل .پدې جنګ کې خان دوه زامن عابد خان اوصدرخان هم برخه درلوده چې خان يې هم په پورته قصيده کې ستاينه کړې وه .

## د خوشحال خان اواشرف خان خوابدي اودنهضت خوريد ل:

د ډوډې ترجنګ وروســـته دخوشـــحال خان اواشـــرف خان ترمنځ يو څه بدګماني رامنځته شـــوه هغه دا چې خوشـــحال خان دخپلو يوڅوتنو زامنو ســـره دصـــلاح اومشـــورې دترې اوبولاقو ســـيمې ته لاړل پدې کارکې يې داشرف خان سره صلاح اومشوره نه وه کړې نواشرف خان دخپل پلا څخه بدګمانه شوې ؤ .

خودغه بدګماني بيا دډوډې ترجګړې وروســـته تردې جده ورســـيده چې دزوى اوپلار ترمنځ حالت پوځي حرکتونه ته ورســـيد خواشـــرف خان خپله دپلارمخې ته رانه غى اوخوشـــحال داشـــرف لښـــکرپه لاچر کې محاصـــره کړ

اشرف خان افضل خان ته وویل چې هغه دې خوشې کړې اویادی دخوشحال خان پ کلا باندې برید وکړ اوکلا یې ورانه کړه داشـــرف خان خلکو هم په ځینو کلیو تالان ګډ کړ اودتنهایې په جوړولوکې بریالي شول .

ځایې خلکو سره یې صـلاح اومشـوره وکړه اوخوشـحال خان خواته دجرګې لپاره ورغلل ،او ورته یې وویل چې تاســې خوپه خپلوکې ســره پلاراوزوی یاست ،ستاسې دبې اتفاقۍ څخه مومنږه بربادیږو،تاسې چې څه غواړئ په نظام پورکې یې سره وکړئ ، دلته مونږ ترپښو لاندې کوئ .

خوشحال دخلکو دغوښتنو سره سم نظام پورته ولاړ خوڅه موده وروسته بیا اشـرف خان غوښـتل چې پلار ووینې خوخوشـحال خا دخپګان وجه افضـل خان دنیکه خبره پلارته وکړه اشرف خان دخپل پلار دلیدوڅخه پرته دښادې پورخواته ولاړ ، ترهغې وورسـته لوی خان یوپټکی اوغوښت اوافضـل خان ته یې په سـر کړاوورته یې وویل چې سـتا پلارماندی سـردارکړی ، هغه په سـرټکولی همدرانګه یې داشـرف خان څخه هم ډیرفریادونه کړي .خودخان قصاید ولولو نومعلومیږي چې دا شرف خان څخه یې هم ډیرفریادونه کړي .خوبهرام خان چې دتاریخ مرصـع په کرښـوکې څومره دپلارپه ضـدښـودل شوی تراوسه پورې دهغوکرښو مطابق په تاریخونوکې راځي .

خو اشـرف خان نه یې هم ډیرسـرټکولی،په همدې ورځوکې امیرخان صـوبه دارله اشـرف خان څخه خوابدی شـو ددې خپګان دوه درې مسـئلې ښـودل شوي .یوداچې اشرف خان خیښ ازاد ګګیانې له امیرخان نه سرکشي وکړه اوبله داچې اشرف خان دامیرخان سوبه دارسره کابل ته ولاړنشو .

نو په همدې اســاس صــوبه درا له پاچا نه داشــرف خان دنیولو اجازت واخیست خودزیاتو چالونو څخه وروسته یې دسیدبهولا چې داشرف خان اشناؤ په لاس ونیو اوبندي یې کړ، لدې څخه وروسته خوشحال خان مشري

بهرام خان ته پدې شرط وسپارله چې اشرف خان دبندي کېدو علت پیدا او هغه راخوشي کړي ،بهرام خان که څه هم په ظاهره دپلارسره ښه ؤ خوپه پټه يې دپلارسره ګوندي کوله .زيات وخت وشو خوده دا شرف خان دبند پته ونه لګوله .پلاريې راوغوښت اودخلکو په مشوره يې ترينه مشري واخيسته خو افضل خان چې په دغه وخت کې عمر دسرداری اومشری نه ؤ خپل نيکه ته وويل چې زه اوس دسرداری نه يم څه چې ماکړي هغه مې دخپل پلاردخوشې کولوپه خاطر کړي دي زه غوارم چې ستاسې ترسيوري لاندې وروزل شم اوتاسو ته ګاولې پرمخ کېږدم تاسې ته داوداسه اوبه راوړم .

ما ته دبهرام خان څخه دمشری ترلاسه کول سان دي ،خوزه اوس جوړنه يم د (۱۰۹۵) هـ ق کال دخوشحال خان حالت ديواوږد نظم څخه داسې معلومولی شو چې دستونزو اومشکلاتو څخه ډک ؤ، سخت پريشانه ؤ لکه چې په خپله نظم کې وايي :

ديوې ستري قبيلې مشريم اوزما حال داسې دی بيا مې هم همت نه دي بايللی او وايې چې په دغه حالت کې هم ددښمن په فکرکې يم زما تربيرغ لاندې به په زرګونو تنه ځوانان راټول شي اوپه پنجاب به بريدوکړو.

خومونږ بيا افضل خان په (۱۰۹۲) هـ ق کال درااجا رام سنګهـ دخلکوسره په جګړه کې وينو .

په همدغه ډول امير خان صوبه دارله پښتنو پرخلاف دجنګ په ډګر کې و ډيربرياليتوبونه ترلاسه کړل اوده ويل چې دجنګ دوسلې داستعمال څخه کارنه کيږي سياست بايد دوسلې پواسطه ونه چلوو . هماغه ؤ چې پيسې اونور ارجذبوونکي مالونه يې پښتنو ته وردلی کول .پښتانه يې سره په خپلوکې واچول ،حال داچې بيا به پښتانه دجنګ دمشورې داخيستلو

لپاره امیرخان ته راتلل خو پدغه وخت کې دایمل خان قوت زیات شو
اوامیرخان صوبه دارفوج نشول کولای چې ایمل خان ته ماتې ورکړي،
خوهغه دعبدالله خان خویشکي سره مشوره وکړه اودخپل زوړ سیاست په
واسطه یې پښتانه داسې خواره واره کړل چې بیا په اسانۍ سره راغونډنه
شول هغه قبایلي مشرانو ته داسې لیکونه واستول چې مونږ
دپخوااهیسې پدې انتظاروو چې ستاسې واکمنې ټینګه شي ، الحمدالله
زمونږه هیله ترسره شوه .خوزه ستاسې پاچا دپاچاهۍ لیاقت لري نو مونږته
خبرراکړئ چې مونږه هم درسره یوشو، ځکه مونږه ډیرمجبوریت څخه
دمغلودواکمنۍ لاندې شپې تیروو ، افغاني مشرانو لیک ورواستوه او
ورته یې دایمل خان دلیاقت اوتجربې زیاته ستاینه کړې وه اوورته یې
دراتلوبلنه ورکړه ،خوهغوی بیا ورته وویل چې ایمل خان ته ووایې چې ستا
ترولقې لاندې ټوله ځمکه په خپلوخلکوتقسیم کړه ،ځکه حکومت دعدل ،
انصاف اومساوات سره خوندکړي ، پښتنو مشرانو دایمل خان څخه
غوښتنه وکړه خوایمل خان لومړی دغه غوښتنه ونه منله هغه ویل چې زه
څنګه کولای شم چې دومره کمه ځمکه ددومره زیاتو خلکو ترمنځ وویشم
خو دمشرانو زیات ټینګارنه یې دځمکې ویشنه ومنله .ایمل خان که څه هم
دخپلو خپلوانو اواقاربو مراعت کاوه نوپه همدې اساس پښتانه سره خلاف
شول اودایمل خان څخه بیل شوه .

مغلودوخت نه په استفادې سره په تیراباندې حمله وکړه دریاخان دهغوی
مقابله وکړه اوپه خپله پکې ټپي شو دهغه ساتونکو هغه راپورته کړاود
خوست سیمي ته یې یووړه ،اوپه همدې اساس هغه ټولنه اوجمیعت چې
اورنګ زیب یې کلونه کلونه ناقراره ساتلې ؤ دتل لپاره له منځه لاړ .

## دخوشحال خان دژوند وروستي کلونه اومړینه

دخوشحال خان داثارو دمطالعې څخه داسې معلومېږي چې دخان دژوند وروستي کلونه دډېرو کړاوونو اوستونزو څخه ډک وو ، خو که مونږه دخوشحال بابا ټول ژوند ته نظرواچوو ،نو دیوداستان په حیث دډېرو تکالیفو اوستونزو سره دهمیشه لپاره لاس اوګریوان پاتې شوی ، که څه هم په پخوانیو ستونزو کې فتحې اوخوشحالۍ موجودې وې خوپه وروستیوتکالیفوکې خوشحالۍ نه وې ،دیوې پیښې څخه به خلاص نه ؤ چې ورپسې به بله پیښه رارسیدلې وه له یوې خوا نه یې دخپل زوی بهرام خان څخه په قراره چیرته وخت ندې تیرکړی هرچیرته به چې ولاړ بهرام خان به ورپسې لښکرې ورسمې کړې ،چې خپل پلا ونیسي اومغلوته یې حواله کړي ، خو ګوتو ته یې نه ورتلو

بهرام خان زیات کوښښونه وکړل خوپلایې ونه شو نیولای ، هسې یې دپلار ازاراوپه عذاب تیا په غاړه واخیسته . همداوجه ده چې تراوسه پورې دتاریخ په پاڼوکې دخوشحال خان په اشعارواودافضل خان په تاریخ مرصع کې په بدنوم یادیږي ، دبلې خوانه دهمدې ستونزو سره سم دکورنۍ دځینو غړیو په مړینه هم ډیرخواشینی ، خفه اوله ناخوالو سره مخامخ وو ، دمصیبتونو اوکړاوونو په همدغه کلونو کې په سیمه کې قحطي اووبا مرض راغی ، چې دغې وبا دخان دکورنۍ ځینې غړي هم له منځه یوړل ، دخان دوه ویشت کلن زوی بخت ناک وفات شو چې خان یې مړینې ډیرخواشینی کړ. دده په مړینه یې هم یوه مرثیه ویلې چې راوړل یې دلته ضروري نه بولم دهمدې پسې سم دې مرض دبخت ناک مورااودبخت ناک یوزوی دمرګ کومي ته یوړل بیا دخان لمسی سرفراز خان دسعادت زوی لیوني سپي وخوړ اومړشو .

په (۱۰۹۸) هــ ق کال دبهرام خان زوی معظم خان هم وفات شو ، دالمسی خوشــحال خان ته له افضــل خان څخه ډیرګران ؤ . داینده خانۍ لپاره یې ورسره امیدونه تړلي وو، خوشحال خان دهریو غړي په مړینه مرثیې ویلې دي چې راوړل یې ضــروري نه ګڼم ،دغومړینو اونورو ســتونزو دخان ژوند نورهم درنځونو اوکړاوونو څخه ډک کړ مخکې موولوســتل چې خان بـه دبهرام خان دلاســه په یوځای کې په قراره وخت نشــو تیرولای ، نوله همدې وجهې نه خان داپریدو ســیمې ( ډنبرې ) ته ولاړ دا دخان د ژوند وروســتي کلونه وو، ډیرژوندی پاتې نشو په ( ۱۱۰۰ ) هـ ق کال دربیع الثاني په اتمه دجمعې په ورځ د۷۸ کالو په عمر له سترو ملي ارمانونو اوکړاوونوڅخه ډک له دنیا څخه ســترګې پټې کړې خو دیادونې وړده چې دخان وصــیت وصــیت هم دلته راوړم . دافغانســتان دتاریخ اودخوشــحال خان دژوند دپیښو داثارودمطالعې لاندې ځینو کتابونو کېوصیت داسې راغلی .

۱ . مـا هلتـه ښــخ کړئ چې د مغلو ســیوری مې پـه خـاوره ونشــې اودمغلودسپرودپښوګردمې په هدیره ونه لویږي ))

۲ . ماخپل وطن ته ورســوئ اوهلته مې په داســې ځای کې ښــخ کړئ چې دمغلوســیوری مې په خاوره ونشــي اودمغلو دســورو ګدونه مې په قبرنه پریوزي ))

۳ . زما قبرپه داســې ځای کې جوړکړئ چې دمغلو ســیوری قدرې هم پرې ونه لویږي اودمغلو دســپرو داســونو دپښــو ګرد زما قبرته ون رســي ، ما دمغلو بهترین پوځونه دخاشــاکو په دود الوزولي دي ، نوپدې اســاس زما قبر پټ وساتئ چې بې احترامي یې ونه کړي )) .

# پای

# اخځليکونه

۱: خوشحال خان ختېک – کامل دوست محمد خان – دافغانستان علومي اکاډمي دپښتو څېړنو بين المللي مرکز(۱۳۷۰) لمريز کال چاپ .
۲: ننګيالی دزمانې – هيوادمل زلمی – دافغانستان دکولتوري ودې ټولنه جرمني (۱۳۸۰) لمريز چاپ .
۳: ګام پرګام خوشحال سره – صميم محمداصف دافغانستان دکولتوري ودې ټولنه جرمني (۱۳۷۸) لمريز چاپ .
۴: په پښتو ادب کې مغلواله – همدرد همايون – پښتو ادبي ټولنه خويشکی نوښار (۱۹۸۹) عيسوي کال چاپ.
۵: ننګيالی پښتون – مهتمم محمداکبر – پښتو ټولنه (۱۳۴۵) لمريز چاپ .
۶: توريالی پښتون – پښتوټولنه دخوشحال خان په وياړ دسمينار مقالې (۱۳۴۲) لمريز چاپ